# چې کتاب زما دے نو اِختیار زما دے


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | غورځنګونه |
| لیکونکے | اباسین یوسفزے |
| وړومبے چاپ | جنوری 1994ع |
| دویم چاپ | اکتوبر 1995ع |
| دریم چاپ | فروری 2001ع |
| سرپانه | ناصرالدین مهمند |
| کاتب | لطف الله خوشنویس |
| چاپوونکے | ملت ایجوکیشنل پرنټرز لاهور |
| بیه | 50 روپۍ غیرمجلد |
| | 70 روپۍ مجلد |

# ترون

د خپلې درنې او سپېڅلې مور
پښتو
په نوم

......

که د خاورو په کورونو کښې اوسېږو
خو په ښکلو ښکلو زړونو کښې اوسېږو
مونږه تل کوو خبرې سپينې سپينې
که په تورو تورو غرونو کښې اوسېږو

# ?

پهٔ درې میاشتو کښې دیو کتاب زرکاپۍ خرڅېدل د ورناوي خبرهٔ
ده - زهٔ به دې ته یقیناً چې خپله خوشبختي اووایم چې زما دې ساده
کوشش ته خلقو پهٔ ډېره درنه سترګه وکتل او زما د ذهن نه ئې
دا خبره بېخي لرې کړه چې د پښتو کتاب څوک نهٔ اخلي یو هغه وخت
وُ چې د دې کتاب قلمي نسخه دوه درې کاله زما سره چاپ ته سترګې
پهٔ لار پرته وه څهٔ زما لاس تش دے او څهٔ زما مټ ډېر خلاص دے -
بهرحال خدائے پاک ډېر فضل وکړو دا دے دویم ایډیشن ستاسو پهٔ
لاس کښې دے -

زهٔ پهٔ راتلونکي وخت کښې د ګرانو بناغلو شاعرانو د غزل د پېجلو
اُستاذانو اکرام الله ګران، خیبر اپریدی او رندېش شمس القمر د کتابونو
چاپ کولو ته فکر ورے یُم - او د الله پاک نه مرسته غواړم -

زهٔ د نایاب بُک ایجنسی پهٔ ادب مئین مالک بناغلي
عبدالذاکر ترین هم مننه کوم چې پهٔ دویم ځل چاپ ئې راته آسان
کړو -

اباسین یوسفزے

۱۶، اکتوبر ۱۹۹۵ء

# اباسین

ډاکټر راج ولي شاه خټک

12.02.2001

"غورځنګونه" د ښاغلي اباسين يوسفزي د شعرونو ښکلې مجموعه ده او دا يې دريم ايډيشن دے۔ د پښتو داسې کتاب چې په نصاب کښې شامل نه وي او نه يې په چا د اخستو څه جبروي۔ بيا هم په اولسي غوښتنه په دريم ځل چاپ کيږي که ناشوني نه ده نو عجيبه او حيرانوونکې خبره خو ضرور ده ځکه چې د پښتو د طباعت په تاريخ کښې ډېر کم يو کتاب د يوځل دوه نه زيات چاپ شوے دے۔ زمونږ په عصر کښې زما د ياد مطابق سېوا د رحمت شاه سائل د يو کتاب نه بل د شعرونو کتاب د اولسي غوښتنې له مخه بيا بيا نه دے شايع شوے

تر اوسه د پښتو په شعري مجموعو کښې تر ټولو زيات ايډيشنونه د امير حمزه خان شينواري د "غزونې" راوتي دي خو د غزونې د مقبوليت تر ټولو قوي سبب د غزل معيار دے

ولې "غورځنګونه" چې په دريم ځل چاپ کيږي نو ددې په شاښکاره دوه عوامل ښکاري يو د ښاغلي اباسين يو سفزي شخصيت او بل د هغه د شعر مقبوليت ـ تر څو چې د اباسين د شخصيت تعلق دے نويو خوش ذوق، خوش پوش او خوش صورت زلمے دے د پښتنې ادابو او اخلاقو په ښاغليو خويونو ښائسته، په شخصي ډول د عصر په زړو ځوانانو کښې د خپل دروند خوې په سبب يو شان مقبول۔ دے ښه کشر، ښه استاد او ښه مشرهم دے۔ د ځوانو جذبو توانا پښتون خلپے د قامي احساس او شعور په رڼا منور ذهن لرونکے د فن په تقاضو پوه اباسين ډېرې نورې شخصي خوبۍ هم لري

بله يې شاعري ده۔ اباسين د خپل شعر سره ډېره مينه لري د خپل فکر د خراش تراش ماهر هم دے سخن فهم دے، سخندان دے، حساس دے ۔ د هرې ښکلانه تاثراخلي چې په شعوري او لاشعوري توګه يرې اغيزه کوي، دغه ښکلا که مجسمه وي، مادي وي او که د فن وي د ده فنکارانه صلاحيت ترې ورده مومي

"غورځنګونه" د دغه تاثراتو عکس دے د خپل عصر د فکري رجحان او شاعرانه مضامينو نه سېوا د اباسين خپل داخلي احساس او دهغې د رنګ د اظهار نمونه دا شعرونه رواني هم لري، بې ساختګي هم او برجسته ښکلے انداز هم۔ په دې لنډو خبرو کښې د اباسين په شاعري پوره خبره ګرانه ده خو د هغه د شعر يو خاصيت ډېر نمايان دے او هغه د اباسين د مقاميت او پښتونيت شعور دے چې د اباسين د شعر زما تر فهم له ټولو زوراور عنصر همدغه دے ۔ هم په حسن هم په مينه هم په مقصد کښې يې دغه مثبتو روېو زور پيداکړے ښکاري او تر څو چې په دغه مضمون کښې زور وي د "غورځنګونه" بيا بيا شايع کېدو تقاضا به پيدا کيږي

# دا باسین غور ځنګ

دیوکتاب دیباچه یا سریزه یو داسې نازک او ربنېمین مزے دے چې په هغې کښې دکتاب مصنف په خپله دخپل بیک په باره کښې د خپلوخیالونوغمې بېلاے شي. ولې هرکله چې دغه کاربل ته وسپارلے شي نوربنتیا خبره داده چې خبره ډېره ګرانه شي، موږ چې داخبړکوو نو داځکه چې موږ دکتاب مقدمه، دیباچه یا سریزه دیوکتاب یو داسې پېژندګلوګنو چې په هغې کښې دکتاب دمضمون دغزېد و او نورېدو پولې په ګوته شوې وي اوداچې په دغه کتاب کښې چې څۀ بیلے شوي وي هغه په لنډو ټکوکښې بیان شي، څرګندخبره ده چې دیوکتاب بنۀ اوسمه سریزه ددغه کتاب لیکونکے په خپله لیکلے شي اودغه شان لوستونکوته دخپل بیک په حقله رومبنۍ اوبنیادي اطلاع ورکولے شي.

موږ دواړه دیباچو لیکلو څه خاص تجربه نۀ لرو، اوبیا په ادبي تله کښې زموږ وزن هم دومره نۀ دے چې د ابا سین یوسفزي د شاعرۍ قدر او قیمت به پرېږي زیات شي، هغه چې په موږ دخپل کتاب سریزه لیکل نوموږ ته لګه چې دخپلې مینې اواخلاص د الیه ورانده کوي او یا داچې موږ جوړې دغم هغې برخې ته رسېدلی

يو چې بس سوزې په کښې ليکلې شي او د ادبي محفلونو صدارت
او مشر مېلمه توب پکښې کېدے شي، هرچې دی په خپله ادبي لار
مونږ د دې عقيدې او دې نظريې سره سفر کړے دے چې هرڅوک
چې مونږ ته په مورنۍ ژبه کښې خپل نظم يا نثر وړاندې کوي
مونږ دا ګڼو چې هغه داسې د خپلې ژبې سره د محبت اعلان کوي
او هرڅوک چې خپله ژبه کښې څهٔ ليکي مونږ يقين کوو چې هغه
خپل قام او ولس ته يو قسم د خپلې ژبې د ژوندۍ ساتلو او هغې ته
دوديې ورکولو د پاره د هر قسم قربانۍ ورکولو لوظنامه وړاندې
کوي، زمونږ ژبه چې د هغې په بنياد زمونږ د قامي وجود، زمونږ د
تهذيب او ثقافت او زمونږ د پښتنې ژوند د ساهو او سپېڅلو قدرونو
لوئے او دنګ لوړ عمارت ولاړ دے.

اباسين يوسفزے زمونږ يو داسې ځلېے شاعر دے چې هغهٔ د
خپلو سيندونو او خوړونو د غورځنګونو نه، د خپلو چينو او چړونو
د شورنه، د خپلو غرونو، ګل درو او ورشوګانو د ګلونو د رنګ نه، د
خپلو سپرليو د نشه ايزو بادونو نه، د خپل قام او ولس د ولولو نه
او د خپلې خاورې د خوږو او خوندورو ورمونه خپله نغمه شروع کړې
ده او هم دغه نغمه د هغهٔ د ذاتي او اولسي احساس ژبه او د
هغهٔ د ځوانو جذبو اواز دے.

يو خيال، يو احساس او يوه جذبه د قلم په څوکه کاغذ ته
سپارل ادب دے، او بيا دغه خيال، دغه احساس او دغه جذبه
د لوستونکي زړهٔ ته کوزول د ادب مقصد دے. اباسين هم د

خپل یک دمقصد او دیکونکی په حیث دخپلې ذمه وارئ نه بې خبره نهٔ دے په دې لړکښې کهٔ یوخوا هغهٔ په خپل مضمون او جذبه کښې زور پیدا کړېدے نو بل خوا ئې مونږ ته دا احساس راکړېدے چې دشعر دفکر او معنې د ښائست دپاره ساده او سوچه ژبه څومره ضروري ده . اباسین یو خو دخپلې ژبې څخه سترګه کوي بل مضمون او ژبه ئې دومره ښکلې دي چې ......... په ښکلګ یو ځوان خپې زړهٔ او نظر دواړو ته دیوې حسرتناکې نندارې خوند ورکوي اندازه ولګوئ چې ددهٔ دامتقاق رنګ څومره شوخ دے او بیا زړهٔ داسے چې زمونږ دثقافت او دژوند ددود دستور نخښې نښانې ورکېږي . داباسین دپښتون غورځنګ څومره زور احساس راکوي . سه

چینوته لاړې بندې ګودرونه شوتیول شا پ

توکیږي تلمیرې دخوړ په ټيټه نوري ورې

رښتیا خبره داده چې په دنیا کښې بس هغه قامونو خپل تشخص ساتلے دے چاچې په هغ شان سره دخپل کلتور رنګ زارنهٔ دے پرېښے

اباسین کهٔ دځوانۍ او ژوند و جذبو، ولولو او ارمانونو وینن بیدار پوهه او حساس شاعر دے نو ورسره ورسره دخپلې مورنۍ ژبې عالم هم دے ، پښتو سره څهٔ کیږي او په پښتو څهٔ تېرېږي ددې سوالونو دجوابونو نه هغه او دهغهٔ فن غافل نهٔ دے . مونږ وینو چې هغهٔ دخپلې مشاهدې ټولې تماشې او دخپل تخیل ټول رنګونه او دخپل بیان واړه هنرونه او دخپل فکر کلونه په هرلحاظ سره

په پښتو پېرزو کړي دي هغهٔ د تکو، تشبیهاتو او ترکیبونو په نوي انداز کښې د خپل فکر او خیال د ملغلرو پېڼلو کوشش کړې دے. ولې د دې خبرې خیال ئې هم ساتلے دے چې نهٔ خو شعر ګنجے شي او نه ئې په معنیٰ کښې ابهام پیدا شي. کله کله خو اباسین مونږ ته وړه زورتهٔ رایاد کړي.

" که شعر وئېل غواړې نو لاړ شه د فطرت په سترګو کښې
سترګې واچوه او هم د هغه ځائے د اولس په ژبه ګویا شه "

محبت د ژوند یو تل تر تله (ابدي) او لور ترلوره (آفاقي) قدر دے او ئې د مینې د سیورې پیتاوُنه نو د شعر او ادب ژوند ګران دے.

راځئ چې وګورو، د مینې سندره او د فطرت ساز او د اباسین د خیالستان موسم. ؎

لکه غوړا سکے هم د ذرهٔ په تیږه وتوکیږ هٔ
د محبت نه د خلا صونې رُوګودے نهٔ راځي

د فطرت غیږ د مینې یوه ساده جذبه څومره تانده، سمسوره او ژوندۍ کړېده او د شاعر هنرته ئې څومره توان بخښلے دے. هم دغه شان دا یو بل شعر د فطرت په رنګ کښې څومره ډوب لیکلے شوېدے مونږ د ژوند او ثقافتي چاپېرچل څومره بربښنا ده پکښې او د شاعر مشاهده، فطرت، تخیل او شعري کمال یو بل سره څنګه غاړه غړې دي. ؎

د غرهٔ لمن کښې په کاړزنه لار د خوړ په غاړه
چې زما زړهٔ بري او به څنلې هغه کور نشته

دغه رنګ په دې لاندینو شعرونو کښې ځومره په ښکلې ډول اباسین خپل یو قامي قدر او یو نفسیاتي حقیقت بیان کړے دے او د اظهار ساده باده انداز کښې یې توپې شعري غوښتنې ځومره په استاکارۍ ترسره کړي دي ۔ ؎

؎ کله د خاورو په کورونو کښې وسیږو
نو په ښکلو ښکلو زړونو کښې وسیږو

؎ مونږ ه تل کوو خبرې سپینې سپینې
کله په تورو تورو غرونو کښې وسیږو

ددې مثالونو نه زمونږ مطلب دا نه دے کنې چې د اباسین شعر د هغه طوفان نه په امان دے کوم چې د پښتو د ګلستان منجرې رېژوي مونږ دلته د هغه د زړورې ځغې او نیار ستائنه کوو د کوم په ذریعه چې هغه په دغه طوفان کښې د پښتو دیوه بله ورې ۔

اباسین هغه ټول مضامین د خپل قلم لاندې راوستي دي کوم چې هغه ته د هغه وخت عصرحالاتو او چاپېریال د لورې پېښ دي او کوم چې دیوښه ساهو او ژوندي ادب د ابادۍ د ختیار لوړه او ګټه څونه ده، هغه د خپلې خاورې ونږ مې د خپل فکر په رنګونو کښې اخلې دي او فني تصویرونه یې ترې جوړ کړي دي، په شعر کښې یې د مینې او ظلمي زړه ساز او د اولسي ژوند د احساس د رډیدلے اواز دواړه په خپل خپل ځنځ داسې رنګونه دي چې زمونږ ادبي ثقافت په کښې هم خاندي هم ځلیږي او پرقیږي ۔

اباسین ددین ، پښتو او انسانیت هغه ټولې جذبې په خپل

شعرکښې ځانګړې کړېدې دکوم نه بغېرچې دېو پښتون وګړي تصوّر نهٔ شي کېدے . داسې ښکاري چې کهٔ د هغهٔ دشعر بنائست دے که مقصد هغهٔ دځېل فکر او فن دريچه دهغې يوې ګل درې دپاره پوري نهٔ ده ساتلې؛ اومونږ کهٔ دا خبره وکړو نو بې ځايه به نهٔ وي چې صم ددغه ګل درو په رنګونو او وږمو کښې د اباسين دشعر ښائست په ښکله ښېل مثال دے .

اباسين دشعرکړې اصناف ازمائيلي دي ولې هغه چې څه وئيل غواړي او په کومه جذبه يې غواړي دغزل په ژبه يې ښهٔ وئيلے شي، دځېل خيال داظهار دپاره دنوو نوو تشبيهاتو، استعارو، کنايو ترکيبونو او علامتونو په تلاش کښې دے' دېښو غاښونو' د زلفو پرېوتې' دشړشمو ککرو' دغانتول چاچې' او داسې کړې شمېرشعري ترکيبونو او تشبيهاتو د اباسين غزل ته ځانګړتيا بخښلې او د اباسين مخصوص ستائل يې جوړ کړېدے چله اباسين هم د اباسين "نه دعلامت کار اخستے او رنګارنګ معنې يې ترې راايستې دي' غزل يې دنوي او نور رنګ ډېره ښکلې نمونه ده هغه چې څهٔ وائي او څنګه يې وائي د دارو کښې هم رنګينې ده هم رنګارنګي دوارو کښې د رمز اشارې او کنايې هغه چُرت او خاصيت دے دکوم نه چې دغزل دغونچه جوړېږي .

"غوړزنګونه " په ادبي ميدان کښې د اباسين رومبے قدم

دے او موږ د مخهٔ د قدم د خاپی نه ډیر په اسانه د مخه ارادي
اندازه لګولے شو په کومه چې مخه دیو تا کلي منزل په لوروان
دے ۔ فقط ۔

اندیشے شمس القمر

او

ډاکټر اسرار

هوتی مردان

۲۶/۲/۹۲

# اباسین بېلې بېلې

اباسین ، یوسفزے اباسین ، د ادب اباسین چې د غرونو د مستۍ او ځوانۍ غورځنګ دے ، خو چې د مېداني علاقو نه تېرېږي نو بیا یې د خپل شرافت خاموشۍ او د فکر ژورتیا ملګرې وی او ډېر په قلاره روان وی .

اباسین د ملاکنډ په سیمه کښې د دیر د خانپور کلی وسېد ونکے دے . دیر چې ډاکټر اسرار یې د کشمیر نه هم زیات ښائسته ګڼی ، دیر چې د غرونو ، ګټو ، چینو ، د ګلونو ، رنګونو د خوشبویو ، د ساده حُسن د ننګ او پت پښتو ، غیرت او د روحانی جذبو مزکه ده چې ترا اوسه پورې یې خپل ښائست ، تهذیب او ثقافت ژوندے او محفوظ ساتلے دے .

د ملاکنډ په سیمه کښې د رحمت شاه سائل نه پس اباسین یوسفزے هغه راختونکے اواز او ترنګ دے چې د ژوند پېغام دے او د خپلې سیمې ټول خصوصیات لری . اباسین د

نوی دور د تقاضو نه بې خبره نهٔ دے ـ هغهٔ ته د ټول تمام
اولس او انسانی ژوند ته د اپښنی کشالې په نظر دی ـ هغه
د عالمی الغاوُ تلغاوُ ، شور شغرب په ټولو غوږ و اوری او د غه
خارجی اثرات چې جذب کړی نو په داخلی جذبو کښې ئې د اسې
و اغږلے شی چې د جمالیاتو یو نوے رنګ پیدا کړی ـ د دهٔ ادب د پاره
دژوند دے ـ سرچینه ئې مینه ده ـ په جانان مئین ، په ټول
قام مئین ، په انسان مئین او په ښکلا مئین دے ـ یوه خبره دهٔ
چې هغهٔ د ټول تهذیب او ثقافت له پاره ډیر نازک جذبات
لری او په دې یو رنګ او اثر قبـولولو ته تیار نهٔ دے ـ اباسین
ډیر نرم او ډیر کلک دے ـ هغهٔ ته په مینه کښې سـر ورکول
اسان کار ښکاری خو ضمیر مجروح کولو ته او ښېتو ورکولو تـه
هرګز تیار نهٔ دے او دا نرم والے او کلک والے د دهٔ په مزاج
کښې داسې یو ځائے دے چې یو ښائسته امتزاج پیدا کوی او
د دهٔ په شاعرۍ کښې د دې خصلتونو پوره پوره عکاسی
شته ـ

اباسین سامو نظریه لری او د دهٔ د خلوص سره به
څوک هم اختلاف ونهٔ لری ـ دے ټوله نظریه په داسې
ښکلی انداز کښې وړاندې کوی چې په چا بده نهٔ لګی ـ بلکې
خوږه لګی ـ د دهٔ د غزل دا انفرادیت اندازه د دې نه لګی
چې د دهٔ په شعر کښې نوی نوی خیالونه ، تشبیهات ، علامتونه
او نور فنی نزاکتونه په ډاګه ښکاری ـ د مثال په توګه ـــ

داجهل مې په خته کښې اخکلے دے ملګريو!
د تندي نه که مرم خو دباران په لوری نهٔ ځم

تيتې سترګې ناست وی' اننګی يې زرغنه وی
خوند کوی چې کله درته بنکلے بې وعدې شی

کله د رحسين يې خو رقيب مې په مخکښې شي
داسې د جانان په اوږو سور په کالی مهٔ راځه

رغبدل پرېږده' خوترمرګه مې ونهٔ رسوی
د زړهٔ په ګل باندې يې سيورے دارمان شوے دے

لکه شمع دې بلېږمه پهٔ زړهٔ کښې
پهٔ قلاره مړ مې نهٔ کړې چې سأ اخلې

ربه! ستا ددې کرم شکر ګزاريم
زما سوچ له دې افغان رنګونه ورکړهٔ

او داسې کې شمېر نور شعرونه دی چې دا باښين شاعری
له يې د جمال او جلال رنګونه ورکړی دی .

اکرام الله ګران

۱۲ فروری ۱۹۹۳ء

# زرغونه

اباسین یوسفزے مغه زلمے شاعر دے چې د کلام سره سره ورله خدائے داسې شخصیت ورکړے دے چې په دربې نظر د سړي زړۀ ته پرېوزي. که د اباسین شاعري مونږ یو اړخ ته کړو او د مغۀ په عام ژوند نظر واچوو نو لکه څرنګه چې د اباسین د ناوې او ربډو سره د سړي په زړۀ کښې یو لطیف احساس راپېدا کېږي هم دغسې اباسین بذاتِ خود د لطافت یوه روغه مجسمه ده . د مینې او خلوص یو مغه بے پایا وه سمندر دے چې حدونه ئې نۀ معلومېږي. اباسین دیو بنۀ شاعر سره سره یو مینه ناک ملګرے یو دُعاګو یه زړۀ او یو مخلص ورور هم دے . د مینې حدونه ئې د ملګرتیا ورولۍ او عزیزولۍ پورې محدود نۀ دي بلکې د ټولې نړۍ غم او درد ئې په خپل زړۀ پورې نیولے دے څوک غمژن او دردمند نۀ شي لیدے .

حُکله خو وائي . سه

د او بنکې یسکه چې دچا په اننګو لاړه شي
لکه تېره توره مې بغه په زړګي لاړه شي

دچا شخصیت یوازي په بنه کړۀ وړه ، ناسته ولاړه ، خوش بیاسی

او دولتونو نهٔ جوړېږي . بلکې د بنهٔ شخصیت خاوند به د بنهٔ سوچ او فکر ښختن وي . دا بېله خبره ده چې نن زمونږ په چاپېرچاپېرچل کښې مادي څیزونو ته لوړ مقام ورکړے شوے دے . خوکوم خلق چې بالغ نظر او ژوندے احساس لري ، د رحمٰن ، خوشحال او حمزه غوندې خاکساره طبیعت لري . هغه به چرې هم مادي څیزونو ته په درونه نظر او نهٔ ګوري او دغه بخري د اباسین په شخصیت کښې هم په بنهٔ شان سره په نظر راځي . اباسین علم ، اخلاق او کردار لوئے دولت ګڼي او دغه اظهار ئې په "دولت لوئے شے دے" نومې نظم کښې ډېر په بنهٔ ډول سره کړے دے .

اباسین خاکسارۍ په تاجدارۍ باندې ګڼي . ؎

ثبوت :- خاکسارۍ به یې یا هم پرېښودې نهٔ وه
کهٔ لباس مې سلطاني په سر مې تاج وے

نو دهٔ ته په خاکسارۍ او کمترۍ کښې ډېر فرق ښکاري - دے د خاکسارانه مزاج سره یو خودداره پښتون هم دے . هغه د چا په وړاندې سر ټیټول کفر ګڼي . بایدچې هغه په مینه کښې ولې نهٔ وي . لکه چې وائي ؎

د ملاکنډ شاڼې مې سر درته اوچت دے کنه
مینه مې کړې ده والله که مې سجدې کړې دي

هر هغه شاعر ادیب ته مونږ لوئے نهٔ شو وئیلے د چا په قول و فعل کښې چې تضاد وي . او د چا د قول و فعل کښې چې یو شان وي نو یو نې لوئے شاعر او ادیب نه بلکې یو لوئے انسان هم دے . او په دغه

تله که مونږ اباسين او ټونو زما په خيال چې د شرشاهي فرق به هم پکښې ښکاره نه شي . او دا احساس هغه مونږ ته په خپله راکوی .

که زما د شخصيت حدونه ګوري
زما فن زما د فکر ترجمان دے

يوازې زۀ نه ! هر هغه کس چې "غور زنګونه" اولولی او بيا د دې ښاغلی شاعر د نزدې نه ننداره وکړي نو يقين لرم چې زما سره به متفق شي . دے که هر څو زلمے دے خو هغه لوړ فکر خاوند دے کوم چې د قامونو مشران لري . او دا دده د لوړوالی هغه مثال دے چې هيڅ ثانی نه لري . نن دور کښې هر سړے خپل غم ژاړي . د دې مصروف دور انسان د کوږ په يو داسې دشت کښې اوسيږی چې د بل چا سيورے ليدل هم نه غواړي . په رګ رګ کښې يې د نفرتونو ، بغض او کينې ويښې راخوټکيږی . اباسين مونږ ته احساس راکوی او وائی . سه

بې له نفرته بې بل تېغ په زړۀ کښې نه ټوکېږی
خدائے زده چې څه چل دې دور په انسانانو شو بدے

نو په دې حال کښې هم دے د مينې او محبت د فلسفې قائل دے . دده د ژوند مقصد مينه کول دی مينه د فطرت سره ، مينه د مخلوق سره ، مينه د خپلې خاورې سره ، مينه د خدائے سره او مينه د ټول کائنات سره . دے د جهان ابادی مينه ګڼي . د هر درد علاج ورته مينه ښکاري . نه چې وينه بهيول . سه

زۀ محبت دهر انسان د زړۀ دارو ګڼمه
ګڼي رقيبه ماله خپل د انتقام راځي

په قام مئين دے ، په وطن مئين دے په انسان مئين دے ځکه
خو د خپل قام د ځلمو او پېغلو دواړو نه ګيله من ښکاري . د هغه
پښتنو پېغلو نه چې د مغربيت په غلبه کښې دي . هغوئ له په پېغور
ورکوي . ~

حيا ئې څو اچرته د جونو د بياس يو ځز و
څۀ ناڅۀ شته لا خو کېدے شي چې ښځې لاړه شي

او يا دا چې ~

شاباسي مغرب به موخۀ ياد لرې
په پښتنو پېغلو حيا قتل کړے

دے مغربي تهذيب وتمدن ، مغربي اخلاقيات ، مغربي ثقافتونه
د خپل پښتني قام خلاف يو سازش ګڼي . د خپل اولس د پاره ئې زهر قاتل
ګڼي . ځکه د مشرقيت د بقا د پاره ځلموته لاربښودنه کوي . ~

ځلمو راپاڅئ مغربي جاګرته لاړې نيسو
د مشرقي خوانئ غندل ئې بې نښې ماتېږي

مودې پېرې شوې خو پښتنو خپل ځان ونۀ پېژند و . ټول عمر
له ربل مدحي واتی . د اباسين حساس طبيعت د پښتنو دا بې لارې تۀ
اونۀ زغملے شي . دے غواړي چې زما قام دې هم د نورو قامونو سره
د ګه په اوګه خپل عظمتونه ګټلي بوځي . په ډېر د پړد بدلي انداز

او عاجزي سره اود قام ته د شعور نعره وهي . سه

درب د پاره پښتنو ځا نونه و پېژني؟
ستاسو د پاره خو به ځان له پېغمبر نهٔ راځي

دے هغه کلک پښتون دے څوک چې د ځان په خوله پائي . د محنت او مشقت قائل دے . قام ته هم د سخت محنت او کوشش درس ورکوي . دے په زيار او کوشش منزل ته رسېدهٔ غواړي نهٔ چې په گټ کښې په دُعا کانو . دلته ئې سرگرداني او گورئ . سه

پاڅه تېشه واخله د غرونو سره سر او وهه
ديار وصال تش د بروزيه سملاستي نهٔ کېږي
د کاميابۍ دارومدار دي په تدبير او محنت
بلا کارونه په تقدير او په تندي نهٔ کېږي

دده د شاعرۍ بله بېغلې او درنه برخه د حسن وجمال او فطرت پسندۍ عکاسي کوي . او داسې ښکاري چې دے فطرتاً يو حُسن پرست شاعر دے او ولې به نهٔ وي . دهٔ چې په کومه ورشو کښې سترگې پرانستي دي هغه د فطرتي حُسن يوه بې پايا وه خزانه ده . د ملاکنډ روماني دره چې د ښائست ثاني ئې د حميد بابا په قول نهٔ په هند او نهٔ په بنګاله کښې مونده شي . ظاهره ده چې دغه رنگونه به دده په ذهن او زړهٔ خامخا خواره وي .

سه

يو ځل چې څوک د ملاکنډ د سينې پيږ او روي
مريض د حُسن شي بيا بې له سواته نهٔ جوړېږي

لنډه دا چې اباسين د غزل د دنيا هغه نمر دے چې د ملاکنډ د سرو درو نه راخېژي او په ټوله پښتونخوا پلوشې خوروي.

نورې خبرې به د حمزه بابا په دې شعر راټولې کړم.

ﷺ

حمزه د خوب اشنا به درته څهٔ صفت بيان کړم
چې کوره ځوک د هرې ډډې اوښکې خوب کړ وى

بخت روان عمرخېل
بټخېله

داپرېل د مياشتې ورمبى
نېټه سنه ۱۹۹۳ء

# ثناء

د وړې شګې سینه کښې راته ښکارې
د شبنم قطره قطره کښې راته ښکارې

د لاسونو په لکیرو کښې دې وینم
په شلیدلی ګریوانه کښې راته ښکارې

زه به څرنګ ستا د ذات څخه منکر شم
دځیل ذات هره ذره کښې راته ښکارې

حیرانیږم چې دا زه یم او که ته یې
چې په هره آئینه کښې راته ښکارې

خدایه ذات دې یوه لویه معمه ده
ښکارې نه خو په هرڅه کښې راته ښکارې

★

---

ستا د شخصيت نعم البدل به پېدا نهٔ شي
څوارلس صدۍ تېرې شوې خو بل به پېدا نهٔ شي

لکه بې سترګو چې تيارهٔ او رڼا نهٔ پېژني
هغه به ړوند وي پېغمبرهٔ چې تا نهٔ پېژني

---

# مور

---

زما کور په تا جنت دے ما د پارهٔ فرشته یې
ژوندَ لهٔ تا نه عبارت دے، ته د ژوند د غر چینه یې

کهٔ ته نهٔ وې زهٔ به نهٔ ومه ۔۔۔ او کهٔ ومه زهٔ به هٔ خهٔ ومه
دا په ماچې نن راحت دے ۔۔۔ دغه ټول ستا برکت دے
ستا غمونه ماته یاد دی ۔۔۔ ستا فکرونه ماته یاد دی
ټوله شپه ماته دُعا کړې ۔۔۔ ستا نخلونه ماته یاد دی
زهٔ دې ګل کړم ځان دې خاورې ۔۔۔ د سپرلی د باد وږمه یې

زما کور په تا جنت دے ما د پاره فرشته یې
ژوندَ لهٔ تا نه عبارت دے، ته د ژوند د غر چینه یې

چې به کله شوم نا جوړه ۔۔۔ ستا ژړا ماته یاد یږي
ماچې وویني تکلیف کښې ۔۔۔ ستا زړګے ټوټې ټوټې کیږي
یو یوَ حق دې په ما غر دے ۔۔۔ دا به څنګه پوره کیږي

تهٔ چې نهٔ یې خدائے دې نهٔ کړي　　زما ژوند به څنګ تېرېږي
خدائے دې داسې نهٔ کړي چرې　　چې زهٔ یم او تهٔ دې نهٔ یې

زما کور پهٔ تا جنت دے ما د پاره فرښته یې
ژوند لهٔ تا نه عبارت دے تهٔ د ژوند دغرهٔ چینه یې

ما د ژوند سبق زده کړے　　ستا پهٔ ښوونې پهٔ ځیا ړو
ستا پهٔ غېږ کښې چې بهٔ پروت وم　　ژومره ښکلے وخت وُ لاړو
چې ایله به پهٔ ژړا شوم　　نو سم روح به درنه لاړو
پهٔ هر درد پهٔ هر تکلیف کښې　　ما له هرځهٔ هرځهٔ تهٔ یې

زما کور پهٔ تا جنت دے ما د پاره فرښته یې
ژوند له تا نه عبارت دے تهٔ د ژوند دغرهٔ چینه یې

ستړیا پهٔ ستړیا وُمه تا لوے کړم　　پهٔ هر ښکلی کار دې بوے کړم
کهٔ ډېر فخر کوم نو کم دے　　چې زهٔ پاک الله ستا زوے کړم
تا بهٔ چرې خفه نهٔ کړم　　خپلې وینې بهٔ زهٔ تو‌ے کړم
زما ذهن دې روښان کړو　　تهٔ زما د لار ډیوه یې

زما کور پهٔ تا جنت دے ما د پاره فرښته یې
ژوند لهٔ تا نه عبارت دے تهٔ د ژوند د غرهٔ چینه یې

وايه خان درته لوګے کړم    کهٔ جهان درته لوګے کړم
مال و زر درته قربان کړم    کهٔ خپل سر درته قربان کړم
شاعري مې درنه ځار شه    زندګي مې درنه ځار شه
کهٔ سجده درته جائز وے    نو زما خانه کعبه يې

زما کور په تا جنت دے ما د پاره فرښته يې
ژوند له تا نه عبارت دے ته د ژوند د غرهٔ چينه يې

کهٔ دې حسن ته نظر کړم    يې د نمرچانه حسينه
څومره سختې دې په سر دی    خلق وائي وې نياز بينه
تا کړه وچه ما د پاره    د خپل ننګلي وجود وينه
هيڅ کمے په تا کښې نشته    ته په هر صفت پوره يې

زما کور په تا جنت دے ما د پاره فرښته يې
په تا هيڅ پېلے نهٔ شم د قدرت يو فلسفه يې

زهٔ کهٔ ټول عمر ېکل کړم    ستا خوبۍ به ختمې نهٔ شي
يو د مور مينه خوږه ده    په پلار دا تسله نهٔ شي
زما تل دغه دُعا ده    مور دې هر چا ته درنه شي

خدائیګو تهٔ زما د پاره      درب لویه معجزه      ئ

زما کور پهٔ تا جنت دے ما د پاره فرشته ئ
ابا سینهٔ درنه قربان شه یو عظیمه فلسفه ئ

***

اغیار کۀ راته جوړ کړی په کورونو کښې دېوال
بورا ته څۀ مزل دے په ګلونو کښې دېوال

چې کور درنه خطا نۀ شي زما دلېونیه
پناه ئې دے دبېرې په بڼاخونو کښې دېوال

نمونه د غریبانو نو دېوال نشته د کور
د خلقو په ذهنونو او په زړونو کښې دېوال

په تورو تورو زلفو کښې دې ښغه سپینه لار
ښکارېږی لکه تورو تورو غرونو کښې دېوال

نفرت په یو کالۀ کښې دېوالونه کړي راجوړ
الفت د منځه لرکړی په ملکونو کښې دېوال

وطن د پښتنو دے سترګې کله تیتوُمُ
پېغور دے د پښتو په ډېوالونو کښې ډېوال

ساده رقیب ته ګوره نیسی لار د ابا سینځ
تینګیږی نه کم عقله په موجونو کښې ډېوال

ستا په رخسار لمبې ســـــوزم
زلفې راخښې وهه لمدې سوزم

لکه د شمعې غونډې ژوند تېرؤم
د ورځې مرمه او د شپې سوزم

هله راپېښ شوې چې ایرې ایرې شوم
ما به په چغو چغو وې ســـــوزم

خزان مې شونډې تراړې تراړې کړلې
سپرلیه کله به راځې ســـــوزم

ستا د بنایُست د سرو غرمو ځې ته
زهٔ اباسّین صحې چپې ســـــوزم

★★★

پهٔ دغه مینه مې دزړهٔ چرې باور نـهٔ راځي
هرځلې کمله وعده وکړې خواکـــتړنهٔ راځي

راته ئې ووېـل خـهٔ دېر پـهٔ ژړغونی اواز
نکریزې مهٔ راوړه دې کلی ته اخترنهٔ راځي

زړګې مې خونې دے پهٔ قلارشه سرې مهٔ نوُن وه
نوی مېن لــره واعظه عقل زر نهٔ راځي

لکه غوړاسکے مې دزړهٔ پهٔ تیږه اوښوکېـد و
د محبت نه دخلاصونې روُ ګودر نـهٔ راځي

ښکواچې وېشتے وُم جانان دکشمالوپهٔ غنچـه
ولې خوشبوبه مې یارانو دپرهرنهٔ راځي؟

ټول ارمانونه ترېنه د بر په بې وسۍ تويېږي
د زړهٔ کچکول پترې کومه خو سکرنهٔ راځي

د رب د پاره پښتنو ځانونه اوپېژنئ
ستاسو د پاره خو بهٔ ځانله پېغمبر نهٔ راځي

د ذات بو هرې منجهد شو په يو داسې کور کښې
پرته چې ټول عمر له سوړ وي او نر نهٔ راځي

د باسيرِ ضرار ته سينه چې د هر پهٔ مينه زغمي
ګنې نو کومې مرحلې زما پهٔ سر نهٔ راځي

★ ★ ★

پهٔ سترغلو کښې مې پاړسوب راشي
نمرچې را اوخېژي نو خوب راشي

ستا تصوّر هم غــــزونې وکړي
کله چې شپه پهٔ زلمیتوب راشي

پهٔ ځان کښې دغسې راټول کړمه
لکه پهٔ جونو پېغلتوب راشي

چې عقیدت دلېونتوبه ووځي
مینه کښې هله سرېتوب راشي

غربت مې داسې ارمانونــه وژني
لکه پهٔ کلو چې وچوب راشي

چې پسرلے پهٔ ملاکنډ راواوړي
پهٔ اباسینځ کښې لیونتوب راشي

هسې د ځان غوندې مظلومه بل څوک نهٔ شولې
خبر کهٔ پخپله مبتلا یُو هیڅ پروا نهٔ لرو

دومره سینګار مونږه نا ښکارو ته حاجت نهٔ لرې
جانانه قتل ته رضا یُو هیڅ پروا نهٔ لرو

داسې جنون چې د منصور ورته هم عقل خوږې
اوګوره دار ته په خندا یُو هیڅ پروا نهٔ لرو

جانانه ځکه خوبتانو لـه بشرې ورانوُ
زړګے مو جمع دے چې ستا یُو هیڅ پروا نهٔ لرو

د کائنا تو په تسخیر کښې مو زاره وچا ووده
خبر کهٔ د زړونه پناه یُو هیڅ پروا نهٔ لرو

هر زړهٔ چا وُدون ته غاړه ښو خو مرام ته رسو
د سوربهار په تمنّا یُو هیڅ پروا نهٔ لرو

څوک ئې د شمعې غونډې توئ شوځان له توی نهٔ وایو
د وخت په سترګو کښې دنیا یو هیڅ پروا نهٔ لرو

تهٔ د داوی غونډې بـېـلا کشافتونه لرې
مونږ اباسین غونډې صفا یو هیڅ پروا نهٔ لرو

***

سترګو ته دې ویلې شوم او شونډو ته دې توے شومه
څومره په ترخه د محبت په خوږو پوے شومه
یو خوا ته غربت زما او بل خوا ته الفت دې تا
لویه معجزه دهٔ داورونو منځ کښې لوګے شومه

چاوي چي مېئن شومه نو ښاد شومه
زهٔ خو ستا په مينه کښې برباد شومه

وګوره زهٔ څومره خوش نصيبه يم
ستا په نامه ټول وطن کښې ياد شومه

ما ډېرې تودې سرې ليدلې دي
زهٔ په تيندکونو کښې استاد شومه

اوس پرې د بنګلا مانړۍ ابادې کړه
ستا د شخصيت چې زهٔ بنياد شومه

وايه کنه څنګ دې لار غلطه کړه
شکر دے چې زهٔ درته درياد شومه

دنګو دنګو غرونو سره سروهم
زهٔ خو اباسيڼ نهٔ شوم فرهاد شومه

نرګسي سترګي دي چکونه وهي ستکوي ډېر
دا شرابي ځواني دي وينمه د خورو په خبر
په انګو کښې دې رنګونه د رنګونو بر سېر
د اضطراب د اسېلابونه دي په شونډو کښې تېر
چې چاپېر چل ته مې د زړه په سترګو وګورم زېر
تا هېرووم ته نو دا دی به رانه څنګه شي صبر
په دې حالاتو کښې به څوک د مينې نوم واخلي
اختر چې تېر شي نو نکريزې په دېوال اوتيه

چې چم ګاونډي مې د غاصب د سترګو سرو خوراک شي
بنا نُسته ګلان مې د بمونو او ګولو خوراک شي
ځواني جذبې مې شي بې وسه د وېنو خوراک شي
زلمي ځوانان مې د ظالم د کارخانو خوراک شي
زما د نوي ژوند امېد د مزدورو خوراک شي
د انقلاب علمبردار مې د کړسو خوراک شي
په دې حالاتو کښې به څوک د مينې نوم واخلي
اختر چې تېر شي نو نکريزې په دېوال اوتيه

د فلسطین په اننګو کښې غوړېو پرلت وهلې
ایران عراق راله مالیانو په خپل لاس لوټلې
د افغان غم راله رسا د زړګي سر چولې
را باندې ګور کړو د کشمیر غمونو کور او کلې
یاران مې چوی د خوشحالۍ نه چې اختر راغلې
مالا لاهغسې ضمیر د وخت روږدې نیولې

په دې حالاتو کښې زړګیه مینه کله کېږي
اختر چې تېرشي نو نکریزې په دېوال او تپه

چې د رقیب نه یار په سترګو کښې سلام اخلي
ګوره په کوم انداز زما نه انتقام اخلي
واعظ د ژوند د فلسفو عظیم کتاب ذوتوی
د محبت د عالمګیر توری نه کام اخلي
مې موږ ونډ ون دے که هر څوخو اوس ئې څله او څکو
چې د ساقي د لاس بوسه هر خاص و عام اخلي

څوک به مانه د نظر غېږه راتاوُ کړی
تو د به نهُ شمه کهُ نمر غېږه راتاوُ کړی

ستا یادونه مې پهٔ زړهٔ داسې خوارهٔ دی
لکه ونې نه چې کوړ[1] غېږه راتاو کړی

ماته وګوری پهٔ کړس کړس پهٔ خندا شی
دګلونو نه به زر غېږه راتاوُ کړی

دځوانئ پهٔ وخت کښې ګل اسمان ته ګوری
چې شی مړاوے لهٔ ډنډر غېږه راتاوُ کړی

زمانه چې مې پهٔ چوٚلی[2] دامان پرېږدی
وسوسې رانه اکثر غېږه راتاوُ کړی

---

[1] دانګور زېلے [2] خوشې بېدیا

زۀ به خنګه د خپل کور نه بهر ووځم
چې ستا یاد را نه په ور غېږه راتاوکړي

اباسینه ورته چپې چپې چپې شي
چې منګې نه په ګودر غېږه راتاوکړي

ته ګل یې، ته خوشبو یې، ته بنائست یې، ته ژبا یې
احساس په بېتو ستړکو راته اووې چې زما یې
راځه چې دا ګریوان درله په غېږ کښې راتول کړم
ترڅو پورې به دا دې وسې سندرې ور یې

اوس چې کوم طرفته ځې زړه به دې لوېږي
زما یاد به درته لاړو کښې پتوکېږي

هریو سیورے راته ستا په شانې ښکاري
دسپوږمۍ رشیه مې په سترګو کښې تېرېږي

زړهٔ ګل چین نه یم یارانو خوشه چل دے
چې سپرلے راشي نو ګوټي مې تخنېږي

ځانته هر وخت آئینه کښې ولې ګورې
زما جانه ښر په عمر نه زړېږي

بې لتانه په وطن کښې زما ښوک دی
بوړې ته راځې چې سترګه مې ړپېږي

څه چې پاس د ملاکنډ په سرديږ واړوم
په رنګونو به دې سترګې نهٔ مړېږي

زړونه مې تول دازغکی په شانې تریخ دے
بې لتا مې په چا سترګې نهٔ خوږېږي

ما وې زهٔ د عشق لهٔ زخمه صحت یاب شوم
اوس مې هم زړګے نړے نړے خوږېږي

چې دې کله د حوانئ رتنهٔ را واخلي
اباسین به درته هله دریابېږي

***

پوهے شومه دبُت نه مینه غوارم
چې تصویرته دې په چغوچغو ژارم

دیدن په وخت کښې ځکه غلے ناست یُم
ستا دسترګو کلامونه ذړهٔ ته ژبارم

ذړهٔ خونُ مې ځکه نهٔ ښکورؤمه
تصوّر دې په کلونو کښې رانغاړم

زما مینه ترې هم چرې کمه نهٔ ده
لهٔ عمرونو ستا په حُسن باندې ویارم

توبلې لوړې به ژورې ته راکاږم
رباسیر ضمیمه په غرونو پسې لاړم

شونډې دې پیکه منګولې یخې دي
دا د بې وفاو خلقو نخښې دي
لاس دې په نکریزو باندې سره نه دي
دا زما د زړه د شونډو غوښې دي
دود له د رقیبان به ورته اوسوزي
سترګې د ټول کلي په مونږ ښخې دي
زه هم په داغونو زړه رنګین لرم
ستا په اننګو که سرې زخې دي
خپله مې تراخه د ژوند خوږلي دي
تاله مې خوږې ورځې پرېښې دي
دا د کائنات د زړه راګونه دي
ځکه خو مې ستا خبرې خوښې دي

اوس وایه چې زور دا باسیرض مني
دادی غور ځنګونه ستا د مخې دي

دخپل ژور زړګی په تل کښې راته تل ښکاری
ځان ډیر پردے پردے ګڼی خو ماته خپل ښکاری

زهٔ دخپل سر د قاتلانو سره مینه کووم
زما انداز د نورو خلقو نه بدل ښکاری

دخپل منزل د رهبرانو په غم نهٔ راپاڅی
دا پښتانهٔ راته کانړهٔ ښکاری یا شل ښکاری

په لیونتوب کښې څهٔ رنګین رنګین خوبونه وینم
ځان راته هره شیبه اودهٔ ستا په څنګل ښکاری

چې هر یو کس لکه زمرے په خپل غرور کښې ګرځی
دا پښتونخوا راته بیدیا ښکاری ځنګل ښکاری

ګوتې دې خوزې تذکرې دَ دولتونو کوې
ستا پهٔ اوبدو تسپو کښې راته چل ښکارې

نهٔ زر منم، نهٔ زور منم ، نهٔ عقل و فهم منم
يو محبّت راته دهرې ښې حل ښکارې

پهٔ ما نشين دے پهٔ خپل قام اؤ فطرت مين دے
دا خو زما د اباسين لالي غزل ښکارې

هسې هم پهٔ پلونو لاړې مهٔ توکه
ترېخ هم دومره نهٔ يم کهٔ شيرين نهٔ يم
زهٔ چې ښتنو ته فيض ونه رسوم
نوم راله بدل کړه اباسين نهٔ يم

درد مې خوري درمانه تاته څهٔ پته
وه ساده جانانه تاته څهٔ پته

ځنګه مې د عمر دشتې کې کړمه
نهٔ شم بې لتانه تاته څهٔ پته

دې ازغو ته کومې ښې دهینګې دی
اے دګلو خانه تاته څهٔ پته

هره ائینه کښې ستا عکسونه وو
ورک شومه دځانه تاته څهٔ پته

مونږه زړهٔ چاودون ته زندګی وایو
وپوښته دچا نه تاته څهٔ پته

ډوب شو اباسینږ دمینې ډوب کړلو
وه یاره نادانه تاته څهٔ پته

هغه پورې غرهٔ کښې بنکارې ټوشونتې پهٔ مابناې کښې
لکه څوک د چاپه قبر څه بلې پهٔ مابنامې کښې

هغه ګورې ګورې زلفې مخملینه توده غېږه
دېخنې نه اوشو شکېږم د ګرمې پهٔ مابنامې کښې

پهٔ آغاز د محبت کښې بېرسرې تا ته یاد دی
چې راتلې به کله کله په بلې پهٔ مابنامې کښې

د بېنو په غابنورېې تول خوبونه رانه تول کړه
خدایه بیا مې له راغله لیونې پهٔ مابنامې کښې

سرېې بنکته کړو مسکې شوۀ د راتلو وعدهٔ ئې اوکړه
ناڅاپې ګُټه پهٔ خلهٔ شوه ویل ئې وې پهٔ مابنامې کښې

---

۱ بیتے

۲ بیدي

عقل و فهم بنديوان کړي د زندان تورو تمبو کښې
د زړګي په تخت مې کښيني يو ‌ډاراڼې په ماښامي کښې

د ژوندون سترې سفر ته زما د اسې کيفيت د ے
لکه شل سرګي خېژي په يو ژغ په ماښامي کښې

اوس دې وخت د شابه لوټ کړه بشکلا [1] کاڼي وړي که مينه
بيا به ورکړه راکړه نه وي د ځواني په ماښامي کښې

اے د ميني زړه چاودونه اے د خلقو ناکردېو
ابا سين ته به ورد انګمې څوک نه ئې په ماښامي کښې

---

[1] د غرۀ غاړه ژړه ، وړوکے غر.

[2] ...نه وي

چې دې حُسن له خزان رنګونه ورکړهٔ
ستا تصوير لهٔ مې دځان رنګونه ورکړهٔ

دَ ژوندون خوابهٔ مې ټول په تا پېرزو کړهٔ
ما غزل ته دارمان رنګونه ورکړهٔ

ربّه ستا د دې کرم شکرګزار يُم
زما سوچ له دې افغان رنګونه ورکړهٔ

هسې هم له قيدې پکښې وسېږم
ما خيل کور له د زندان رنګونه ورکړه

ستا د شونډو تصوّر مې سترګې سرې کړې
تا مې خېزمو ته د بګران رنګونه ورکړهٔ

ټول سوانګرې د وطن ورته حېران دی
اباسينه له چې اسمان رنګونه ورکړهٔ

لېونی زړهٔ چې بې چلونه يو په سل زيات کړهٔ
سيانړه لالي بې ورته ولونه داوربل زيات کړهٔ
دائې زما دزړهٔ قطرې پهٔ لاس کښې کېښ نيولې
لهٔ بې ګلونه دنګريزو په منګل زيات کړهٔ

## پېرزوينه

واعظه تهٔ يرې په دلو دلو عذاب راکړه
ساقي خواب شومه يو دوه ګوټه شراب راکړه
دکلي خلق راته ټول په تماشه ولاړ دي
سور لازمي نهٔ دے خو پاڅه يو ګلاب راکړه

## آرزو

چې د زړونو نه راټول بُغض وعناد کړي
چې دشمن د اتفاق په بناخۍ باد کړي
نو هله به ستا دلاس بنګړي په لاس کړم
چې دګل غونډې وطن راله ازاد کړي

ګرد دے که غبار دے خوبس خوښ مې دے
داچې ستا دلاردے نوبس خوښ مې دے

ستا د مینې غم ته ولې تیښ وړمه
هرڅوکه دروند باردے نوبس خوښ مې دے

یه زاهده ! څه پوښتې چې څه رنګه
ستا پکښې څه کاردے خوبس خوښ مې دے

ګورتې ترېوالو دازما اوس
څومره خوار وزار دے خوبس خوښ مې دے

ژوند ته د کوهکن په سترګه ګورمه
څه ! زړه چاوړے کاردے نوبس خوښ مې دے

وخت د الله د زړهٔ کرشتي غوځي کړي
عمر مي په دار دے خوبس خوبښ مې دے

داڼي سره سر مي چاته تيت نهٔ شو
عقل نه اوزګار دے خوبس خوبښ مې دے

زهٔ پهٔ رقيب خيال د يار لهٔ مخه کرم
مرګ ته مې تيار دے خوبس خوبښ مې دے

ستا د کرسو ستړګو[2] نه لوګے لوګے
ژوند مې ناقلاړ دے خوبس خوبښ مې دے

موږ د اباسين[1] د غاړو ستړي يو
څهٔ عجب ناتار دے خوبس خوبښ مې دے

★ ★ ★

[1] زور اوبهٔ کبدل۔

[2] چلولي ستړګي

ګل پسې راندهٔ شو په نګهت پسې راندهٔ شو
یه ملګرو مونږ په محبت پسې راندهٔ شو

اورم چې زلمو د تدبیرونو چارې پرېښوې
دې د بدلون دورکښې قسمت پسې راندهٔ شو

نهٔ یې څکو پیالې راله په شونډو پورې نیسی
مونږ د نرګسی سترګو په ست پسې راندهٔ شو

تول د تربګنو لومه کښې نښتي دي پرقیب ړی
لاړهٔ ښتانهٔ په مصلحت پسې راندهٔ شو

دې مغربیت مې د تهذیب جرړې ورستې کړې
چم کښې درندو په بصیرت پسې راندهٔ شو

نور به بې لګې بوټي کړه او نه جوړېږي
يـه خلقه بـې په نصيحت پسې ړانده شـو

خدائے دې لېونے کړه موږ دې هسې توبه ګار کړو
چرته دے ملاستا په جنت پسې ړانده شـو

سپي د زردارانو پـه بخملو کښې لوغړېږي
خدايګو د انسان بې په ختپسې ړانده شو

موږ د ابا سيرے غونډې زور فکـر ممتاز کـړو
بنګاليو غونډې نه يوچې شهرت پسې ړانده شو

---

له سپابکه - دوه بناخے - اپرم

ستا د خوشبويو خمار کښې ګرځمه
سم لکه د عطرو بنار کښې ګرځمه
زړه د څپل فطرت نه باغي شوې يم
ټوپورې به دې مدار کښې ګرځمه
ته مې تورتمونو نه يتکې شوې
ما وې د تيرو په غار کښې ګرځمه
ستا د حسن لاسو کښې نښتې يم
ستا د خودبينۍ په تار کښې ګرځمه
ښيې مې سوې سوې زړه پولۍ پولۍ
ژوند دے که په سور انګار کښې ګرځمه
ستا د بنګړو شرنګ رانه زړه وړے دے
څکه د ګودر په لار کښې ګرځمه

ترے ترے يم که اباسيڼ يمه
تاپسې په هر ديار کښې ګرځمه

***

نقوش دحُسن دي دغرونو غونډي کلک ولاړ دی
دغم ګلزارکښي دي رنګونه پهٔ چورلک ولاړ دی

غوښ غوښ لاسونه چاودي شونډي د اُجرت په طلب
دمحل منځي ته مودو نه کاني تک ولاړ دی

تاڼي په کوم جرم دبناره اود ګاره ویستل
ستا لیونی اوس هم پهٔ صفي وعدو کلک ولاړ دی

مینه کوه نو دحیا پهٔ دېوالهٔ دننه
پهٔ بلی مهٔ راځه ټول خلق کوی شک ولاړ وی

پهٔ دي اوبوکښي به دژوند آثار اوس څهٔ پاتي شی
دخوړپهٔ ژی باندي بي خرته پلپوٹک[1] ولاړ وی

---

[1] یو تریخ بوټے مهیان وژنی۔

دوئ پخپل تبرخپلې ښېپې وهي ستومانه نهٔ شـو
واړه قامونه دوهيليو ته لک سک ولاړ دي

هسې نه داد وطن ښکلې د نظـرے نـهٔ شي
دسوات په غروتو کښې نمبر[1] غنچک غنچک ولاړ دي

داوربل ولونه ې پهٔ سپین تندی څهٔ داسې ښکاري
لکه جښ په سینه واوره کُنجیلک ولاړ دي

نن چې ورپېښ شوم ستا دزړوبلو تصویرونو پهٔ چم
ټول ارمانونه مې سینه کښې پهٔ تیندک ولاړ دي

ستا داوربل پهٔ اراده باندې اونهٔ رسـېدم
چې دې له ورایه زلفان څله دېچک ولاړ دي

همت په غرا وکړنګ نهٔ دے څانته لاس اوباسي
داباسیرض پهٔ لار کښې څومره غرونه لک ولاړ دي

***

[1] نظر پانه، دسپېلنې پوتسم

رسا ترکلی د دلدار خېږی
پهٔ دغه پورې غره چې لار خېژی

پهٔ ملا دې زلفې داسې تاوُ را تاوُ شی
لکه پهٔ سروهٔ چې بنامار خېژی

څوک چې پهٔ ګل هم د وېشتلو نهٔ وی
عمر له د اخلق پهٔ دار خېژی

د اخلې ګرانه ده چې راشی سپر لے
پهٔ ګلد روکښې د ننه وکار خېژی

د دراز قامت لالی ته کله رسی
رقیب مېن دے د ے به چنار خېژی

هغه مارغان حُسن پرست گڼمه
چې پهٔ خزان کښې ئې چغار خېژی

دا بآسیرض دا ابشارو نــو نغمې
کهٔ ترنّم د موسیقار خــېژی

***

پهٔ حالت د مسیحا باندې خــبر یُې
چې زړګے ېُې ځانله شین کړو پهٔ داغلو

دجمال پهٔ چس مې داسې خاورې باد شوې
بیا څه نهٔ وینم بغیر د ژمنو زیلو

بچې د زړهٔ نه د بل کس خبره نهٔ اورم
د اسې کوڼ شوم چې پهٔ وس خبره نهٔ اورم

محبت کړمه کنګس خبره نهٔ اورم
هسې ناست یم پهٔ مجلس خبره نهٔ اورم

لکه څوک چې پهٔ شپږه تبه پړېوزي
د دیدن پهٔ وخت کښې خس خبرهٔ نهٔ اورم

عاشقي راسره داسې چارې وکړې
مرم د لوبې څو د نس خبره نهٔ اورم

محبت پرېښودے نهٔ شمه سا صحه
غلے غلے شه بس بس خبره نهٔ اورم

شوخ ليمهٔ چې دې خهٔ وائی زهٔ پوهېږم
دريغه زهٔ به د نرګس خبره نهٔ اورم

اباسينه! نيمه پهٔ شاړو باندې زغلم
زهٔ به څنګه د اولس خبره نهٔ اورم

## شاعر

زما هم پهٔ هغه کلی کښې قيام دے
محبت چې چرته عمرله بدنام دے

بلکه شمع ظاهر خاندې پټ ژړېږی
د شاعر غريب څهٔ ژوند د خونا کام دے

ستړګې دې شمعې دی لمبې نهٔ دی نونورې څهٔ دی
د شونډو کرښې دې اړې نهٔ دی نونورې څهٔ دی

چې دې قطار قطار کګلونه دی تومبلې پکښې
تورې کمڅې دې ګل دړې نهٔ دی نونورې څهٔ دی

کږې وږې دې تنګې دی خومړ ټیمه پړې
د پښتو نخوا لارې کوڅې نهٔ دی نونورې څهٔ دی

اتش فشان چې دې زما د اسوېلو وچـــاوو
اوس دې په شونډو زلزلې نهٔ دی نونورې څهٔ دی

په هرقــدم باندې لتاړ شومه وجود مې وسو
ډوندون مې څهٔ دے غرغنډې نهٔ دی نونورې څهٔ دی

سپرلے رنګونه ستا دحُسن دانداز نه اخلی
ځوانی دې ورنه شپې نه دی نونورې څه دی

دشنو دبونو زیړګلی چې ئې په سر اخستی
دا باسینګ مستې چې نه دی نونورې څه دی

★★★

## دوه شعرونه

که دعظمت تکل کوې نو پاڅه شپې روڼې کړه
دشوګیرو په بیعه دبر دکار شپېنه کېږي
هاغه دګلی ورشوګانې دګودر مازیګر
مړه دبنار په دې سیبرو کوڅو کښې میسه کېږي؟

پهٔ ځان مې څهٔ څهٔ کاڼي پورې نهٔ کړې
تنديه ستا ليکې مې نورې نهٔ کړې

خپله جونګړه مې تاله واله کړه
نو د محل نه مې راپورې نهٔ کړې

اغيار زمونږ کلي ته ګوته نيسي
چې د اتورسرې موسرتورې نهٔ کړې

د تورانګو اوازونه راځي
شمعې چې سترګې تورې نهٔ کړې

وړهٔ مې کړو ځان لکه رانجهٔ پهٔ ګټه
خو د جانان سترګې مې تورې نهٔ کړې

زهٔ به چاودلي شونډي څهٔ غوړې کړم
تهٔ چې راغجهٔ په سترګو پورې نهٔ کړې

دا بهٔ هېڅ له اول زهٔ درځمه
تهٔ چې بدل چرته راپورې نهٔ کړې

اے د بنګلا د مملکت ملوکي
زمونږ کوډلې چې نسکورې نهٔ کړې

زهٔ دخپل ذات په اباسین لاهو شوم
تا د پېښز ببو نغمې شورې نهٔ کړې

ملګرې هرڅوکهٔ د تندې مرمه
د اباسین ذکر به خورې نهٔ کړې

## يوشعر

يوځل به ستا د احسانٔ لاسونه هم خاورې شي
خزان چې راشي د ګلاب ګلونه هم خاورې شي

داوښکې بیله چې د چا په اننګې لاړه شي
لکه ټبره توره مې ښغله په زړګي لاړه شي

زه چې زړېږم ځوانېږي هومره
حُسن به ځان ووژنې ستا نه چې ځواني لاړه شي

هغه لمحه زه د خپل عمر حصّه نه ګڼمه
کومه لمحه چې ستا د یادونه خالي لاړه شي

په دې جدید دور کښې هم په خدائ یقین لرمه
ګمان مې نشته چې مې دغه سرکشي لاړه شي

بې مینې ژوند راته څه داسې بې نمکه ښکاري
لکه د کلي د ملک نه چې خاني لاړه شي

نفرت زما د کلی خلق په سینو کښې ساتی
د محبت خیره ښتګه تر زړګی لا رړه شي

دیا پخوا چرته د جونو د بیاس یو ځز وُ
څهٔ ناڅهٔ شته لا نو کېدے شي چې بیخی لا رړه شي

د سمندر په لوری د روی د منزل په لوری
د ابآسین نه به بیا چرته روانی لا رړه شي

مونږ ه به خاوري محبت کړے وے
راپسې وي د خلقو خُلې سترګې
بعضې جذبې د حیا په وس کښې نهٔ وی
زاهده ښله مې ترې سترګې

ملګرو خدائیګو که مې لږ ترس پهٔ ځان شوے دے
پهٔ محبت کښې چې زما خومره تاوان شوے دے

رغېدل پرېږده خو ترمرګه مې ونهٔ رسوی
د زړهٔ پهٔ کل بانډې مې سورے د ارمان شوے دے

بې لهٔ نفرته بې بل تېغ په زړهٔ کښې نهٔ تو کیږی
خدائے زده چې څهٔ چل ددې دور پهٔ انسان شوے دے

د بنګلو غوټے پهٔ مودو مودو لتښې وی
چې کله هم د مېنانو امتحان شوے دے

زما د سترګې محبت د حسرتونو جائیداد
زما د وینې پهٔ قیمت بانډې ارزان شوے دے

د شګو کلی ښونی رهوا ته نهٔ جوړېږی
زهٔ یو مزدور یَم او مزدور خندا ته نهٔ جوړېږی

کهٔ پهٔ غوښتلو شی نو غرږے د ارمان پهٔ سیمه
زړهٔ به مجبور کړمه خوځُلهٔ مې تا ته نهٔ جوړېږی

دې له د نمر د سترګې پاهه او تکور پکار دے
د زړهٔ زخمونه د سپوږمۍ رڼا ته نهٔ جوړېږی

زړهٔ ښون ساری کړې مازغهٔ د محبت پهٔ رنځ کښې
سړے او ترشی بیا دارو دُعا ته نهٔ جوړېږی

اول راپاڅئ د ماحول نه د اتیرې جارو کړئ
روښان ذهنونه د تیارو نه شا ته نهٔ جوړېږی

یو ځل چې څوک د ملاکنډ د سینې په اوروي
مریض د حُسن شي بیا بې له سوا ته نهٔ جوړیږي

دا څو د زړهٔ کرشتې غوټې شي ماتغهٔ اوبهٔ شي
سترګې په وس چرته اکثر ژړا ته نهٔ جوړیږي

دنن کاروزنه هم اکثر په سبا وونو سبا دي
ددې مصروف دور انسان سبا ته نهٔ جوړیږي

په محبت کښې کائنات په یوٌ نقطه مرکوز شي
په دې لنډ تنګ ژوند کښې سرے بل چا ته نهٔ جوړیږي

هغه منګې هغه کودر د اباسین په غاړه
هغه منظر چې اوس د کلي خوا ته نهٔ جوړیږي

---★★★---

له د زړهٔ زور اوبهٔ کېدل ، سترے کېدل .

دچا په خُله بانډې زما دحال تپوس وکړی
دومره هم ډېره ده چې کال په کال تپوس وکړی

زما په زړهٔ زما په سترګو تېرې هسې نهٔ دی
څوک دې زما دلیونی دحال تپوس وکړی

رقیب ئې اوس لهٔ کلی راغے زړهٔ مې وبوګنېد و
دکوتی لال نه به څوک څهٔ دلال تپوس وکړی

زهٔ خپل تالا والا قسمت په زور اوزېر پېژنم
نو دپالی نه به څوک څهٔ دپال تپوس وکړی

چې پېغلتوب ئې لوپټه دململ نهٔ پېژنوی
دنن دپېغلې نه به څوک دشال تپوس وکړی

چې اباسینه دپښتونخوا خلقو ولې ولې کړو
کهٔ پهٔ جنت کښې مو بابا خوشحال تپوس وکړی

ګله چې ازغي هم رانه ځان راټولوي
څوک به چې ډېرې رېبنې ګربوان راټولوي

عشق لکه منصور غونډې يو باندې پوهېږي
عقل مسئلې د سود او زيان راټولوي

زړونه د مېنو کړې خوارۀ د ګل پۀ رنګې
پس له غزونې چې ګرېوان راټولوي

زلفې يې ناکامه د جبين پۀ احاطه شوې
غرونو ته دې خيال دے چې اسمان راټولوي

هغه يو اقرار مې د امېد پۀ زړۀ کښې نال دے
څۀ ناڅۀ زړګے مې د ارمان راټولوي

څرنګ مې حرم د زړهٔ پېځ اوساتم مڼګرو
ستړګې مې هندوې دې بتان راټولوي

دېرې بې حده بشکلې ږُ چې څرنګ بهٔ دې ستايُم
څوک به د لفظونو نه موتيـــان راټولوي

زهٔ ږُ لېونے کړمه اوخوائي يخه نهٔ شوه
ګرځي اوس د کلي ماشـــومان راټولوي

وګورئ کنه څومره سنګدل زما قاتل دے
ستړګو نه مې وينې په ســتان راټولوي

مړی نهٔ خوچې کله د غورځنګ لهٔ برمه پربوځي
څوک به اب سيغرله شاعــران راټولوي

* * *

راتلهٔ راتلهٔ زما په خونه راغلهٔ
آخر گوېوان له مې اوروسنه راغلهٔ

زار دې د شونډو له پرهاره شمه
زما په شونډو ترې پیاړونه راغلهٔ

شاید چې زهٔ دومره حسین نهٔ یمه
ستا په نظر کښې بناسُتونه راغلهٔ

ایله دې اوس د زړهٔ په غلا پوهه شوم
چې انګو کښې دې رنګونه راغلهٔ

زما زړګے د مړو بنار مهٔ ګڼه
دلته اکثر چاودلی زړونه راغلهٔ

بې مینې ژوند نهٔ شي ما وُمنله
چې مې پهٔ سترګو کښې ګلونه راغلهٔ

بیا به دغرونو سینې ونړېږي
پهٔ اباسینڅ کښې غورځنګونه راغلهٔ



دسوَل سوَل ګړبوانه بسمې بسمې زړګی قیصه ده
چې ستا دښمنې ګل وُ دهغې زړګی قیصه ده
اوس چې ستا یادونه ځم ځمه ښکینه ورته نهٔ کړي
دا یوه ددا سې بې اسرۍ زړګی قیصه ده

دوران چې غوځ کړم په ځيګر نو يو په لس خوشوم
د خپل ارمان په اديره ښکه نرګس خورشوم

ستا دنګې غاړې ژبه راکړه نو ټپه ټپه شوم
ګودرته لاړم په حجره کښې په مټلس خورشوم

عشق حيران ګته په خوله عقل ته داسې وائي
رانه پوښتنې هسې مه کوه نو بس خورشوم

ځان چې د نمر شغلو ته ويښ خوته چې ګل کړې
لکه د پرخې دې په غېږه کښې تس نس خورشوم

زه محبت يم ستا عظمت منم خو ما به منې
حسنه ما خور کړې په نړۍ زه ستا نه پس خورشوم

لکه د ګل ديوې پېغلې ګمڅو مړاوے سنه کړم
زه اباسين ضرور مه په کلي په اولس خورشوم

لکه ټترې ټترې شمعې مې لهٔ کوکله وځي
هر یو ارمان ته مې ښېرې د زړهٔ د تله وځي

رقیب د سترګو نګېدو هډو خهٔ پرېښی نهٔ دی
زهٔ پهٔ یوه محفل ته راشم دے پهٔ بله وځي

روح به مې هم ورسره وځي پوخ یقین لرمه
کهٔ ستا خبره مې د وجدان نه مکمله وځي

بیا به د ژوند پهٔ هره لاره تېند کونه خورمه
کهٔ ستا نزے نزے اوښې مې لهٔ خټکله وځي

زما پهٔ غم ژېلې زړهٔ کښې مینه د اسې ښکاری
لکه زړهٔ وچه تانته کښې چې بمبله وځي

جونګړې سوزي ۔ جونګړو ميکنان ستي شو
په سور تاړاق کښې خلق چرته له محله وځي

زما د زړۀ نه به تۀ وځې تصوّر ونۀ کړے
چې ساه ترې وځي نو ستا ياد به ترې نه هله وځي

د اباسين ضربۀ شاعري کښې به هيڅ باقي نۀ شي
چې ستا چپې چپې ځواني ئې له غزله وځي

* * *

## دوه شعرونه

ماته ئې اسانه کړه دستړي ژوندون لاره
زار دې شم له ستړګو له جبينه له رخساره

تاسو تاج محل لره معراج د ميني وايئ
مونږه محبت ساتو بهر له کاروباره

ستا یادونه مې په سرکښې په چورلک شي
څوک چې وژاړي زما هم زړه داډک شي

د جهان درانه پېټونه په اوږدو وړم
ستا تصویر په سینه کېږدم زړه مې سپک شي

چې زما د تقاضو پېټکی راښکې شي
د جانان په لوپټه لاسونه کلک شي

بیا د هر ښکلي په سترګو کښې ځان ګوري
محبت کښې خوسرے د ځانه ورک شي

خیل تش پیالې امېدونه مې رایاد شي
چې مې پښه چرته په لاره کښې تیندک شي

---

ستا دیاد په دنګو دنګو غرونو خېژی
نو زما د تصوّر په ملا کښې ثخک شي

چه ښېې ابلې وږے تږے چرته ګورم
د تقدیر په مسئلو باندې مې شک شي

زهٔ د مینې اباسینه یورم لاسو شوم
ستا د حُسن غرډې تاته مبارک شي

## خال

پهٔ دنیا کښې اِکّ یو ېې بې مثال ېې
زما ژوند ېې زما روح ېې زما لال ېې
د خپل حُسن څهٔ مقام درته معلوم دے؟
د ژوندون په انګو کښې مې تور خال ېې

ستا د سترګو جادوګرو اثر کم شو
که زما د زړهٔ غرور و سرې خم شو

نهٔ پوهېږم چې خفه شم که خوشحاله
چې مې ذهن پهٔ زړګوټې کښې مدغم شو

ستا وارهٔ وارهٔ يادونه غرغنډه شو
ژوند مې ټول د ارمانونو جهنم شو

پهٔ وطن کښې پهٔ هر لور ورېږي واورې
پهٔ رګونو کښې چلن د وينې کم شو

ما چې خپله ځواني وليده پهٔ اورکښې
ګلې ستا د بېغلتوب راسره غم شو

لهٔ حرکته سته جاروځي اباسينه
که ماحول درنه چاپېر د داورې چم شو

***

د انګو ګل چې دې کله تقاضې کړې دی
ما ورته هاغه وخت د وینو نذرانې کړې دی

ستا د دې دوو سترګو درنو د تقدّس په خاطر
د زړهٔ په سر مې د رقیبو ملازې کړې دی

ګلشن د هغو ملکیت دے حق د هغه چا دے
چا چې بلبل غونډې په اوچو دانو وښې کړې دی

د بنګلاګانو په وطن مدام سیرلي د پاره
خزان زېلو زړونو خپلې وسې بنې کړې دی

د ملاکنډ شاني مې سر درته اوچت دے کنه
مینه مې کړې خو والله که مې سجدې کړې دی

شفقه تاته ددې زېړ ماښیـګرې په خاطر
مېینو زړونو په سکنی مابنام بنېرې کړې دی

ګله په ما هغه اقرار هغه ناشـــــونې وعده
د انتظار دسرو لمبو په غېږ کښې شېې کړې دی

د ژوند دحُسن څه احساس خوراکوې منګرو
زما په کور کښې محرومی مدام مېشتې کړې دی

مړاوې ګلشن ته به ډولی دسروګلونو راوړم
ما ته مې مور دښښتنو ژلمو قیصې کړې دی

ګوهوان مې خیرې رنګ مې زیړ وښسته مې تسنې وسنې
دوخت سیلو په ابا سیرض دغه کاڼې کړې دی

* * *

ځه چرته کښې شاړو ته په کوړ پهٔ کلی مهٔ راځه
نن يې راته ګوې چې بيا نور پهٔ کلی مهٔ راځه

ګله د ډېر حسين يې نور رقيب مې پهٔ ګټو کښې شي
داسې د جانان پهٔ اوږ وسورپهٔ کلی مهٔ راځه

زهٔ پښتنه پېغله يم د رواج يې وسه کړې يم
خلق راته وئ کړي پېغور پهٔ کلی مه راځه

تا راته ويل چې دا پرهر د زغم نهٔ دے
وخت مې ورکوې زړهٔ له تکور پهٔ کلی مه راځه

زهٔ پهٔ يوه وړه شانې جونګړه کښې وسېږم
تهٔ د اباسين غونډې پهٔ شور پهٔ کلی مه راځه

* * *

ستاو بڼ مې چې مې دېره شوې په ګرېوان کښې
لکه ټل د ګلو وي په بيابان کښې

د نغمو، د خوشبويانو ، د رنګونو
يو ذره ټوکس مې نشته په جانان کښې

ستا راتلو سره مې اوښکې داسې تم شوې
لکه نمر چې راښکاره شي په باران کښې

خال دې جنت دا ننګې په خوا کښې ناست دے
تمېز ورک شو په آقا او په دربان کښې

محبت وي چې د زړهٔ پرهر ټکور کړي
ګنې نور څهٔ وي په غېږه د درمان کښې

د جنون په کوم پړاؤ دې راته ووې
چې تقدیر یبلې کېږي په اسمان کښې

د بناګست نمر دې په مونږ ه نېزه وال دے
خامخا توریږي خلق په ملتان کښې

نفرتونه د حالاتو پیداوار دے
ېې د مینې نه بل څه وي په انسان کښې

ستا د اشونړي ولې وچې کېږي
اباسینه خوکمے نه وینې په ځان کښې

یو شعر

د فکر تېغ راله زرغون کړه کښې شا ړېږ شمه
داور بخړی مې خواني سبزي لتاړ به شمه

لکه د خوبه چې بېدار شي سړے
مینه چې وکړي نو هوښیار شي سړے

دچا د سترګو نه چې اوغور زېږي
لکه د غرځ نه راګذار شي سړے

د زړهٔ او ذهن مېنځ کښې ژوند تېروو
لکه پهٔ دوه کښې راایسار شي سړے

د ساتنې دوربه څهٔ مینه وي
څنګه د عقل نه اوزګار شي سړے

د ژوند خوند ونه ټول پهٔ مینه کښې دي
چې محبت نهٔ کوي خوار شي سړے

د تنهایۍ پهٔ جزیرو کښې اکثر
د خپله ځانه هم وېزار شي سړے

د ګناه توان چې زړه کښې پاتې نهٔ شي
بيا چرته هله توبه ګار شي سړے

دولت او پوهه سره نهٔ جوړيږي
علم چې وي څنګه مالدار شي سړے

د ژوند منزل ورته بـلا اسان شي
چې اباسينړ غوندې خودار شي سړے

## غورځنګونه

غورځنګونه به ترڅو پورې مغلوب کړې
يوه ورځ به ځان پهٔ ما پورې منسوب کړې

تهٔ کهٔ هرڅو د غرور پهٔ غونډۍ ناست يې
اباسينړ کهٔ دې راډب کړو ځان به ډوب کړې

*

د سترګو تور د شونډو سره د نظر ست وربږي
په چا به قات وي نو په مونږ خو محبت وربږي

زما د ګل غوندې جانان بوږي پرا نيزي شونډې
دا چې فضا نشه نشه ده او نګهت وربږي

هر څهٔ چې کيږي د محل د خدايانو لهٔ خوا
د تهمت کاڼي د جونګړو په محلت وربږي

د جانان غمې غمې توري قاتلاڼي سترګې
اول ودېږي نه چې اوري نو قيامت وربږي

دُ نن زمليه ته دَ ځان دَ حاله څهٔ خبر يُ
د زهرو پرخه دي اشنا په شخصيت وربږي

دردہ چې څومره دې قوت وی هغه ټول ختم کړه
زما لپاره فقط په وخت کښې د رخصت وربښې

چې دور انسان ته بې زحمته څه عطا نه لری
څوره په هغې خلقوهم د خدائے رحمت وربښې

د اباسین په روڼ تندی باندی اثر نه کېږی
د زمانې له چاپېرچله کثافت وربښې

* * *

لکه چې تندر په کنډار سینه د غرۀ غوځوی
د لېونی هره خندا بې داسې زړۀ غوځوی
څنګه به څُلۀ ورکړی زما د زړۀ تنکی زخمونه
د شونډو پاڅې پرې بندې پټې په بانهٔ غوځوی

دلته کښې قدر د بهار نهٔ کېږی
په دې وطن کښې مې روزګار نهٔ کېږی

زهٔ په خزان کښې سرهٔ ګلونه غواړم
ستا پسرلو ته رانه وار نهٔ کېږی

ما له بې تولهٔ مینه راکړه اشنا
زما په لږه مینه کار نهٔ کېږی

په مخ مې اوښکو لارې جوړې کړلې
خو د قاتل په زړهٔ کښې لار نهٔ کېږی

خدایه په خوب کښې بې حضور کړې ورته
ګني زمانه خو اظهار نهٔ کېږی

وخوره قسم د خپلې زنې په خال
ستا په ما ولې اعتبار نهٔ کېږی

لیونی تل په محبت سمبږی
قاضي ته وایه چي په دار نهٔ کېږی

ربه زما هریو ارمان پوره کړې
دومره بلا دی چي په شمار نهٔ کېږی

رورو به ځو که هرڅو لار ګرانه ده
بعضي کارونه په تلوار نهٔ کېږی

اوس ناصحانو اخر ومنل چي
د اباسین په زړه کښي لار نهٔ کېږی

د تصوّر په لاسو، مازیګری رانیسم
اوس دګودر په غاړه اور اورکی رانیسم
څومره ساده خلق دی مالیون سار ګڼي
دوي مي ګریوان رانیسي زهٔ مي ځواني رانیسم

# اواز

لکه شپونکے دسوزګداز ډکه شپیلۍ غږوی
یا لکه پانې دغخر تېزه سیلۍ ژړوی
یا لکه سویه چرته ډېرظالم ښکاری قتلوی
یا لکه څوک دخواربلبل اشیانه ورانوی
دسماعت هرې پردې ته چې به ذر رسېدو
داسې اوازچې دزړه تل ته ئې اثر رسېدو

هغې اوازله ماخته شکل وشباهت لټوو
خوتخیل کښې مې تصویرمغسې نۀ جوړېدو
بلاتت سیوری مې دذهن په پرده رېبده
بلا کړېږه وې خوزنځیرمغسې نۀ جوړېدو
په یوه تړه داحساس په هرډګر رسېدو
داسې اوازچې دزړه تل ته ئے اثر رسېدو

لکه ابشار ئې غورځنګونه وهل زورئې کړو
په وچو تړو کښې ئې لارې ویستې کور ئې کړو
د درد د زور نه به ئې کړیکې ویستې شور ئې کړو
لمبې ئې چا هم نه لیدلې خو سور اور ئې کړو
راتلونکې هرې مسئلې ته به ژور رسیدو
داسې اوازچې د زړه تل ته ئې اثر رسیدو

هاغې اواز کښې ناویلي بغاوت پټ وو
هاغې اواز کښې نالیدلے محبت پټ وو
هاغې اواز کښې یو نړئ مصیبت پټ وو
هاغې اواز کښې یو کوتلے حقیقت پټ وو
څو مره دوربین وو مستقبل ته ئې نظر رسیدو
داسې اوازچې د زړه تل ته ئې اثر رسیدو

هغه اوازچې د زړګونو اندېښنونه ډک وو
د برڅرغونے وو د هتپکو او سلګونه ډک وو
زما غوږ د نوته ورتوئې شو لکه ګرمه سیکه
لکه خوږ لن غونډې دننه د سپرغو نه ډک وو
داسې تکلیف به ما ته څیله هم اکثر رسیدو
داسې اوازچې د زړه تل ته ئې اثر رسیدو

ما نه يُې خپلې ساندې هيرې کړې د وير اواز وُ
د مصوّر دَ يو زړلي شان تصوير اواز وُ
زما د مستې حوصلې صمت يُې وُپـــرزوو
زما شاعر اوبېوونے احساس يُې وُلـــړزوو
پکه نظر غونډې د ساې ترخُيگر رسـيدو
د اسې اوران چې د زړهٔ تل ته يُې اثر رسيدو

ما درنها په تکل عمر له تيرې خـــوړلي
اور اورکوته مې په چول بيابان شپې خوړلي
زهٔ يو انسان يُمه د مينې دليتون په خاطر
د مينې قند له مې تارياق د زمانې خوړلي
چې مې دسترې زړهٔ اوازې په بحرو بر رسـيدو
په دې دنيا کښې مې ايله درد د تېمر رسيدو

* * *

چې ستا نوم مې خلې ته راشي تېروبېر شي
ترنم مې ترې په شونډو کښې راتېر شي

که تيارې مې خوښې نه دي خوارمان دے
چې د زلفو يو تورتم رانه چاپېر شي

حافظه مې ده کمزورې هېر مې دېر دي
ستا د حسن به لا هم د چا نه هېر شي

پېغلتوب دې داسې وسپړدې جانانه
لکه ګل کښې چې رنګونه رابرسېر شي

ستا بنائست مې د خوانئ نه داسې تاؤ شو
لکه اور چې د ځنګل نه راچاپېر شي

د سپوږمئ که په دې بام راښکاره کېږي
ليونی به په دې کلي کښې رادېر شي

ستا یادونو خوزهٔ ډېر ذرې ذرې کړم
زړهٔ مې غواړي چې دا زړهٔ دڅانه پرې کړم

دډیوې دُود راته زلفې زلفې کېږی
ددې غمه پهٔ کالهٔ کښې ډیوې مرې کړم

په یوحال کښې محبت پرېښبودے نهٔ شم
په دروغه د ناصح سره وعدې کړم

پهٔ سحر کښې د جمات پهٔ کټ کښې ناست ئیم
چې ماښام شي نو تکل د میخانې کړم

مسکیتوب کهٔ دې ایله شو د نظره

په واړه زړه کښې بلا راځا یومه
محبّت څو زړه مکان د ښادۍ کړم

ته چې ورځ په ورځ زمانه لرې وځې
زړه خو دې خبرې تا ته درنزدې کړم

د یادونو ابآسیر ضربه دې لاهو کړې
که زړه دړې دُعاګانې درپسې کړم



چې هر خواته پکښې مینه راخوټېږي
زما زړه دې دچینې په شانې روڼ کړو
تا جذبه راکړه ماحُسن ځانله خوښ کړو
چې مې سوال وکړو نوځان دې راته کوڼ کړو

لکه چې اوس په سورا پړېوځي
دخولو څاڅکي دې په ما پړېوځي

په نيمګړنو شال کښې دي څه ته ګورم
لکه چې نمر د غره په شا پړېوځي

ستا د تېرو تېرو بڼو نه ځار شم
زما په هره مدعا پړېوځي

حيران د زلفو په قسمت پورې يم
تالې چې اوخوري نو په تا پړېوځي

چې محبت د زړه قفس ته راشي
لکه په مړي کښې چې ساه پړېوځي

بیا يې په عمر کښې ملاېنغه نهٔ شي
چې لهٔ نظره د دنيا پرېوځي

ستا په شان ډېر د سرو دروحسينان
د اباسين ضرغنې ته بلا پرېوځي

سپوږمۍ هم ستا د پلوشو په سبب
د اباسين په څپو رڼا پرېوځي

o

## خال

په زلمیتوب کښې دې رنګونه د جمال پورې کړه
اختر چې تېر شي نوکريزې په دېوال پورې کړه
نوې ځواني، درازې زلفې، ګل ورين نقشونه
د وروځو مينځ کښې نظرماتي له يو خال پورې کړه

ستا سترګو چې مستي شوخ وشنګ خبرې زده کړې
ډېرو حسينانو ترې رنګ رنګ خبرې زده کړې

نن بې ترې په زور ديدن غوښتلو دائې اووې
اوګوره زما د درمننګ خبرې زده کړې

مخکښې خو انسان د محبت پېغام راوړے
بيا چرته کښې وروستو ئې د جنګ خبرې زده کړې

مينه معلومېږي د اظهار محتاجه نه ده
نهٔ شمع ګويا شوه نهٔ پتنګ خبرې زده کړې

نن بې د وطن ښکلي په چغو چغو وائي
موږ دا باسيرنه د غورځنګ خبرې زده کړې

★★★

کمکے یم نۀ پوهېږم چې غمونه غاړې باسم
په خپله سرو ازغوته پرهرونه غاړې باسم

تر هاغه وخت به ګرځم سر وهلے بروهلے
تر څو چې دارسمونه رواجونه غاړې باسم

چې خوب وربکښې وينې هغه ژبه دې ګونګۍ کړه
بې ننګه يُې خوبيا دې هم پښتونه غاړې باسم

د ژوند په فلسفه باندې بس دغومره پوهېږم
داورپه مینځ کښې ځم خو منزلونه غاړې باسم

هر څو مره که ناسورشي په ازغوې پرهرونه
بلبل غوندې په هر قدم ګلونه غاړې باسم

په وچو وچو تيږو کښې شينکے زرغو نوومه
کم عقل ابا سين ځريمه تورغرونه غاړې باسم

ستا محبت راله ذره سترګو کښې نم نهٔ پرېږدی
خوب ته مې اوس هم ستا د زلفو پېچ وخم نهٔ پرېږدی

انسان کهٔ هرڅو زوره ورد ے خوبې وسه هم دے
رب خلیفه ته دجهان واکې کلهم نهٔ پرېږدی

هغه پرې تربه پخوا ده په یو پرالوتې
نادان زړګے مې لاتر اوسه هغه چم نهٔ پرېږدی

څوک به ژړا کړی څوک به خاندی قدرتی امر دے
فطرت لا سڅو دتقدیر په زیروبم نهٔ پرېږدی

په خپل کرېوان کښې نظر نهٔ کا نهٔ دیار سترګو ته
د ساده خلق دېوالونه دحرم نهٔ پرېږدی

لالیه هیڅ د هېرولو په چل نهٔ پوهېږم
ستا غم زما په سوی زړهٔ کښې بل یو غم نهٔ پرېږدی

واعظه ستا نصیحتونه پرې اثر نهٔ کوی
دا باسیرِ غاړه خوښکلې په قسم نهٔ پرېږدی

## ډاډه راځه

د غمونو د ابښکرې څهٔ لهٔ بره څهٔ لهٔ ښکیه
تهٔ ښهٔ ډال سینه اوسېږهٔ غمې مهٔ کوه زړګیه
مونږ په لاړو کښې کړلے محبت په پوله پوله
اوس د چا نه مهٔ وېرېږهٔ ښهٔ ډاډه راځه سېرلیه

○

ستا تصوّر به مې دزړۀ دخوانه اور واخلي
چنار چې زوړ شي خو د خپله ځانه اور واخلي

د تنهايي په يخو غرونو به واورينو لارو
سړے که د برېښ څنډۍ دچانه اور واخلي

چې په خطا سره موسترګې په يو بل ولګي
د مخ سرخي ئې د نوې حيانه اور واخلي

که دا سکروټې مې هم داسې په مازغو پرتې وي
يو ځل به دغه زمانه زمانه اور واخلي

د ځنګل اور دے نو اخر بيا به ې ښنګه وژني
که ګورې زلفې دې زما د ساه نه اور واخلي

زما د زړۀ اتش فشان که يو ځل وشوړېږي
نو ستا د حسن اباسين به رانه اور واخلي

★

چې سحرخېزې نوخلق رنړا وژني
ستا دا سپينې سپينې سترګې به ما وژني

وسېنګار هېڅ حاجت نشته قلارشه
ما خوستا هره شېبه ادا وژني

روښان نکړه ښېښتانهٔ زما د کلي
ګوره ما د محبت په ګناه وژني

خدايه دغه دې لاڅرنګې انصاف دے
پرخه ژاړي او ګل خان په خندا وژني

د نفرت د کلي واړه فسادونه
محبّت د زړهٔ نه هره بلا وژني

پېغلتوب به دې زما څوانئ تالا کړي
غټان عمرله خواران بې ګناه وژني

د چېرته څان ساته چې لاهو نهٔ شي
اباسين ضر به دې په مينه کښې بيا وژني

پهٔ ګوګل د ننه تول پرهر پرهر یم
زهٔ د درد د هرې سرېږې نه خبر یم

چې د ځانه او جهانه .بې خبر یم
خبر شوې یم چې ستا د زړګي سر یم

د دنیا هرې سختۍ ته مې زړهٔ ټینګ دے
نو چې وخت د مینې راشي نو اوتر یم

د رقیب دپاره تکه توره شپه شم
د جانان دپاره زېړے د سحر یم

ستا غمونه راته لاړې د ښار نیسي
زهٔ د دې غمه په کلي کښې اکثر یم

پهٔ سور دهاړ کښې یُم دګورې او بې سیورے
پهٔ تورژمی کښې په شان نکه د نمر یُم

پهٔ دالان کښې وارخطا وارخطا ګرځُم
پهٔ خپل کور کښې هم پهٔ شان د مسافر یُم

پهٔ نفرت کښې نکه اوس لمبه لمبه یُم
پهٔ خلوص کښې بې پایاوه سمندر یُم

منزلونه به اوس خامخا کښېوزی
ابآسین پهٔ منزلونو باندې سر یُم

○

## یو شعر

داوچو اوچو شونډو آه سردلهٔ برکته
دانهٔ چې څهٔ لیکم خو ددې درد لهٔ برکته

څوک د بغاوت په سزا قتل کړي
څوک د محبت په ګناه قتل کړي

چرې د یزید سندرې نه وایم
څوک به د حسین غوندې ما قتل کړي

مونږ به پکښې هم د کال ګذار وکړو
یو رقیب په مخکښې زما قتل کړي

څوک چې د ژوندون سندرې نه وائي
هر هغه شاعر او ملا قتل کړي

جام ذرې کړي چې نور نه څکمه
یا مې د یار هره ادا قتل کړي

راشئ چې دځان په خوند موپوهه کړو
څئ کنه : منصور خوشوک بیا قتل کړئ

پام چې درنه یو فکر هم خلاص نهٔ شي
دا د سلاخونو په شا قتـــل کـړئ

شابسې مغرب به موخهٔ یاد لری
پهٔ ښتنو پېغلو حیا قتل کـړئ

اودم چې د اورسوے پهٔ اور رغی
وارهٔ مینان پهٔ ښکلا قتل کړئ

کوره د تیرو تقدس نهٔ منی
دغه ابا سیرخ یه رښا قتل کړئ

مینه چې رادرومي نو دعقل مزې پرې شي
او رته به سره دپوهې کله څوک نږدې شي

بیا به دې هم چاپ دقدمونو بنکلو ومه
ګمرکه نیزه والړ شي اوداز مکه دتانبې شي

عشق لکه شاهین دالوتو په هزبوئې دے
عقل تمامې عمر چې دامونه وریشې

بیاکه ما پرېږدې خوځه چې نه پرېږدم یوازې
یو ځلې چې څوک مې دې زړګې ته رانږدې شي

مه راځه داوبنکو پشکال چې مې تم نه شي
پرېږده چې سترګې مې به تالپي رڼډې شي

تیتې سترګې ناست وی اننګی ئې زرغونه وی
خوند کوی چې کله ذرته بنکلے ئې وعدې شی

دا به مې د ذرهٔ زما په فن باندې احسان وی
شونډې د غزل که مې د ذرهٔ په وینو سرې شی

د بر مې دَ خلوص لهٔ لاسه لیې لیې شکلی دی
زهر ورته نهٔ وایم آشـــنا راوړلی دی
ستا دا رخسارونه چې پرقیبړی تاته پته دهٔ؟
ما د بیونتوبه خپلی وینې ورشیندلی دی

نم دې په سترګو کښې رنګونه سېزي
پڅه لاهم چرې ګلونه سېزي

د شونډو يا مې دې تکور راکوي
د نظر مالګې دې زخمونه سېزي

د غرغنډو په منځ کښې ژوند کومه
څوک مې سبا څوک مې فکرونه سېزي

يو انګې بل دې سرخي د شونډو
لکه اورونه چې اورونه سېزي

د ښکلو خلقونه به څوک خفه شي
زوره ورخوارو له کورونه سېزي

ډېر نژدېکت مې ارمانونه وژني
او فاصلې راله يادونه سېزي

قاضي په دې فتوې دښاره وويست
چې ابآسين دخلقو زړونه سېزي

●

## ساه

چم کښې مې اوسېږي نۀ کوڅه کښې مې اوسېږي
خومره زوره ور دے په سينه کښې مې اوسېږي
دومره رانژدې شوې حدونه ټول تمام شُو
اوس د هرې ساه په اندازه کښې مې اوسېږي

○

سپوږمۍ هم کړی کناره زما دکور نه
یو قدم نهٔ ځي تیارهٔ زما دکور نه

زهٔ انسان یم پهٔ دشتونو کښې وېرېږم
بل ځائې نهٔ شي ګذاره زما دکور نه

دغرور پېرے دې کوز کړه چرته راشه
لاړ به نهٔ شې دوباره زما دکور نه

ګاونډیان مې راغونډ شوی کور مې سیزي
راغلهٔ دې ېې وړهٔ سکارهٔ زما دکور نه

پهٔ پردو تیلو کښې سوزمه پښتون یم
غلیم جوړه کړه بارهٔ زما دکور نه

دبې ننګه دبچو لهٔ سره زار شو
اباسینه شو رابنکاره زما دکور نه

---

ښکلي به بلا وي په جهان خو داسې نه
زۀ هم د پېرځين وُ مه ارمان خو داسې نه

تۀ مې په زړګي کښې داسې ښخ ئې لکه غشی
نور ښکلي به هم وي په ماګران خو داسې نه

ستا د پرېشانه زلفو ول ته رسی نه
برګه د نخترشي پرېشان خو داسې نه

نن مې ترینه لاس د ښکلو لو په نیت دا ښک
روښې راته ووې چې قربان خو داسې نه

حُسن، موسیقي او شرابونه يې دوزګار
یم د زړۀ د تل نه مسلمان خو داسې نه

خدایه تا خو زۀ پۀ اباسین کړمه لاهو
ما درنه غوښتے وُ جانان خو داسې نه

داغ يې راله جوړکړو د زړګي په سر
خال دے د ښها دانګی په سر

مينه لېونتوب نهٔ دے نوښهٔ دی نور
خپل شو رانه پاڼې د پردی په سر

نهٔ ګورم لهٔ قصده درته نهٔ ګورم
اخلم ستا د سترګو دشمنی په سر

چرته به ساه واخلم پښي بې ماتې شوې
څوبه ګرځومه زندګی په سر

مادې په بنا ئست سپرلی رانه ويسته؟
وخوره تهٔ قسم د سپرلی په سر

څهٔ دمزې دواړه ډېره شوي دي
مینه مې په زړهٔ او شاعري پهٔ سر

هسکه غرېده واوړې سترګې تیتې کړې
مخې له پېچې راشي د منګې پهٔ سر

ستاد لېونو سترګو پهٔ جنګ پسې
اخلمه د توپل کلي بدي پهٔ سر

●

# پښتني

مونږ ویږن د زمانې یوهغه مستنه نغمه کړه
زمونږ ساندې نهٔ څاڅېږي د نغمې پهٔ کور د ننه
کهٔ هزار ځله سوزېږي له خلې اُف به یې وانهٔ وړي

څوک ئې منزل مې د څوندون په هڅلار پروت دے
زما قسمت د رواجونو په انګار پروت دے

که نه ځي تول عمر منزل دے که ځي دوه ګامه دے
د جانان کلے په هر چم په هره لار پروت دے

زلفې کمځې کړه یا ئې کږې کړه زما پـــه ولـــو
دا دې په نرمو او نازکو اوږو بار پروت دے

دا په کلونو باندې پرخه که باران شوے دے
که دا ئې پېشم د خولو په سپین رخسار پروت دے

بې لتا میچا هم زما د خـــلې حال وانه غست
د شونډو خاپه دې تر اوسه په مزار پروت دے

هاغه چې مونږه يې بلو د محبت په نامه
په دې ساده توري کښې څومره لوئ اسرار پروت دے

مدام چې ناست په کومه ځائګه يې هم هاغه ريښې
پښتونه ! دا درپکښې لوئ د عقل کار پروت دے

د محبت ذ ابراهيم په يو خلی راتلنه
حرم د زړه مې د بتانو نه اوزګار پروت دے

ساقي ديوګوټ سره خيژم له اسمانه بره
ما کښې پخپله هم بلا بلا خمار پروت دے

وائيم چې خپله شاعری په اباسين لاهو کړم
چې په خيبر کښې د پښتو د غزل پلار پروت دے

نه يې څه دَرَز اونه چاوُ د وکړو خوچې[۱] مات شــو
ستا د شنو سترګو په نظر مې د زړه ګټې مات شو

د غانټول ګل وُ زما لاسو ته را اونه رسېد
خاص په غندله کښې په ملا باندې چورلټ مات شو

سترګې يې ګل شولې ستا لارته په کتو کتو کښې
ګله راځې کنه زما درپسې خټې مات شــو

چې د زړدار په ګرېوانه به لګه باز غوټه شوې
هغه منګولې شوې معذورې هغه مټ مات شو

پتنګ عاجز ته د وصال موقع په لاس نه ورځي
ډيوه زنګونو خېره وُ نوره ډيوټې[۲] مات شــو

---

[۱] تيول     [۲] د ډيوې اېښودلو ځائې

چې سوچه مینه او خلوص پکښې وپړیا خرڅیدهٔ
هغه هټۍ شوې دړې وړې هغه هټۍ مات شو

ججره توټې توټې تقسیم شوه بټکونه شو ټول
کرسۍ ځاۍ ونیوُ چې کله پکښې کټ مات شو

ـه د دوکان چوکاټ ، درشلې

لهٔ ګلچینانو دغو تپوښتنه څله کوئ
دپښتنو نه دپښتو پوښتنه څله کوئ
شاړې پرتې دی ته بهٔ وګړ دجلاله جمات دے

بوګنوونکې غونډۍ شپه ده، خدائے دې خبر کړي
جادوګره راسره ده ، خدائے دې خبر کړي

يو د چا د پېغلو کې مينې ګرمې ده
بل زما د ژوند غرمه ده، خدائے دې خبر کړي

د سالو په سرولو چل يې نه زده
څه خرابه زمانه ده، خدائے دې خبر کړي

د رنګونو شونډې وچې وچې کېږي
په رخسارې زرغونه ده، خدائے دې خبر کړي

داوبو په غاړه تږې ناست يو
يو ځواني او بل روژه ده، خدائے دې خبر کړي

زړهٔ مې ږي ځوانى مرګے غونډې وخت دے
د ارمان شونډړه مې شنه ده، خدائے دې خېر کړي

ليونى د اباسين چپو ته دانګى
لامبو نهٔ ورځي ساده ده، خدائے دې خېر کړي

●

## اِخلاص

بنګله او محل نهٔ لرم بونګړې ته مې راشه
نهٔ کټ ته به مې ګورې نهٔ پوزى ته به مې ګورې
نو ماله چې راځې نو دا يوه خبره واوره
"تالى ته به مې نهٔ ګورې تندى ته به مې ګورې"

په ځان مې بيا سترګې خوږې کړه زه هم هاغه يمه
دخلقو سترګې راپسې کړه زه هم هاغه يمه

لتاړې دشتې دي قسم دے چې دتندې مرمه
دشونډو جام دې رانږدې کړه زه هم هاغه يمه

دهاغه وريت نظر تکور مې په زړګي ورين ی
يو ځل مې بيا خولې خولې کړه زه هم هاغه يمه

بيا دې دکلي په کوڅو راغلمه چرته کښې يم
دبام دسره نه ښېرې کړه زه هم هاغه يمه

راشه چې نۀ وينم په سترګو ځواني مرګ وختونه
صبرې مې تولې حادثې کړه زه هم هاغه يمه

د ځوګودونه د مزل دی پڅي بدل ښکاري
خلاصي د عمر فاصلي کړه زهٔ هم هاغه يم

يا مي احساس دي زهرجن ماحول کښي مهٔ سوزوٓ
يا مي د زړهٔ سترګي ړندي کړه زهٔ هم هاغه يمه

---

" زړهٔ نه دي لري وسوسي کړه زهٔ هم هاغه يمه "

د طرح ماله عاقل خان افريدی راکړي وه ځو تر اوسه ئې پري
لا پخپله غزل نهٔ دے ليکلے ۔

ښيېي ابلي کرحمه اکثر لالیه
غني دي مۀ کره په ور لالیه

اے ېي پاياوه سمندر لالیه
رغے دېر اوختے ژور لالیه

غوکۀ پۀ قد قامت کښې دېر عظیم دے
لار ئې ختلي ده پۀ سر لالیه

ستا دلېمو زور اوزېر پوهه کړمه
د محبت په زېر او زور لالیه

دلېونو ښېرې دي ونۀ وهي
دلېونو د زړګي سر لالیه

دوست دسنګر لهٔ سورې لرې ساتم
دشمن ته نهٔ پرېږدم سنګر لا ليه

دارو درملو ته دې جوړ نهٔ کړمه
ودې ويشتمه پهٔ ټټر لا ليه

لهٔ اباسينه اوبه نهٔ غواړي څوک
لا ترې نهٔ يې شونډې تر لا ليه

***

تيارهٔ کښې دارمان دګلې پخ څنګه راټول کړم
غمې دسپينو اوښکو پهٔ بالخ څنګه راټول کړم
دوخت پهٔ سمندر کښې چې مې ذات چپې چپې دے
پهٔ ماته ائينه کښې بهٔ ځل مخ څنګه راټول کړم

ستا خوانږه خوانږه خوبونه زما برخه شو کېږه شوه
زه په خپل اختيار کښې نهٔ يم ستا پهٔ واک کښې زما شو نه

د بېلتون غارمهٔ چې سر ګشي د يادونو واورې پاخې
د ديدن شپې پرې وکړه په زخمونو مې سوکړه شوه

تو له شپه بېړۍ زغلومه د يترو په سمندر کښې
تورو شپو کښې رانه ورکه د خوبونو جزيره شوه

چې ګيلې مې راشروع کړې سرئې ښکته کړو مسکۍ شوه
زړې کلکه غارې راکړه بورې مېړ ترې بانه شوه

په والله چې به خدايان شي که د ابنګلی چا خبر کړهٔ
په نظر د زمانې کښې د دوئ دومره مرتبه شوه

دلته څوک دے پرسکونه دلته راج د زړهٔ چاودون دے
ستا کهٔ حُسن لاړ پناه شو زما هم خونه تاله شوه

قیامت خېزه انتظارؤ لا رې هم سترګې څنبلي
ستا د پلونو په ارمان مې خواره سترګو کښې اوده شوه

ځان ترې ډېر په ناز ساتمه خو ستا یاد د غاړې غوړ دے
ستا د فکر اباسین کښې د غم مالګه مې اوبهٔ شوه

●

## رڼا

د هر ذهن دریچه کښې رڼا غواړو
ربه ستا نه په سینه کښې رڼا غواړو
د وهمونو په تیرو کښې موګزران دے
د احساس په ائینه کښې رڼا غواړو

★★★

د سندرو اجازت راته مېلاوُ دے
خو د خُلې نه مې سېلاب داوښکو تاوُ دے

ماهم د غسې لهٔ دردهٔ ېېچ درېېچ کړې
ستا د زلفوولچې شنګه تاوُ راتاوُ دے

زهٔ د ګل او د بلبل خبره نهٔ کړم
د مالی د بې رخئ نه مې زړهٔ چاوُ دے

په فطرت باندې د زړو سېورے وشو
محبت په مخلوق کښې په داوُ دے

ستا د سرو سترګو لهٔ فیض لهٔ برکته
په سینه کښې مې زړهٔ نشته سور تالاوُ دے

د ماښ پهٔ غتهٔ تیګه ورته پروت یم
ترنم د ابا سینډ دے او بیتاوُ دے

ښکه مستقل کوم قیام په میخانه کښې
اخلمه د ځانه انتقام په میخانه کښې

د رسي کۀ مدام وی میخانه لاړه مقبل شو
تومره شوخ ولاړ دے ګل اندام په میخانه کښې

پرې مې بدره ساقي ته دې له ځه لاندې وزم
ښکل نۀ کوی نوند هسې په جام په میخانه کښې

دومره نادیده ؤ چې په لیولیو ئې اوښکل
راغللو په شېخ باندې سرسام په میخانه کښې

کله چې زمونږه دریاب نرو بادشاهي وه
شېخ به ګرځېدلو بې لګام په میخانه کښې

خدایه اباسینه دمیو راولې چې وښکو
نۀ شو ګرځېدلے هرمابنام په میخانه کښې

ستا ېۀ اوږدو اوږدو وعدو چې اُمیدونه ترم
دګل په پاڼو به دشونډو پرهرونه ترم

سترګې راپورته کړه لالیه چې ئې وجنګوؤ
زۀ خو په زور باندې دچا سره جنګونه ترم

د لوپټې پېڅکې ئې اونیوو په غاښ وئیل ئې
ګلشن ته څو خو په ګمڅو به دې لاسونه ترم

ستا دچپو چپو چشمانو نه بې ویره کېږی
ځکه په غاړه کښې داوم سینسی بندونه ترم

خیل زړۀ بې غټ غټ شوکېږ لے دے پرواه نۀ لرم
ستا دسهرې به په خیل لاس باندې لړونه ترم

زما کتاب کښې د نفرت هډو نامه نشته دے
زهٔ همیشه په محبت د خلقو زړونه ترم

وعده چې وکړې لیونی، نوبیا ئې مهٔ ماتوه
زهٔ ستا پهٔ سر د خپل رقیب سره شرطونه ترم

ستا محبت مې پهٔ سینه کښې غورځنګو نه وهي
دې اباسین ته به ترڅو پورې بندونه ترم

●

دوئ د شین سترګې جادوګر کرامات نهٔ پیژنی
دوطن خلق ځانته پیښې مشکلات نهٔ پیژنی
د هغه دور تصوّر مې دوخ پهٔ کانړو اولی
بیا به زما بچے حجره او جمات نهٔ پیژنی

کله زما آه وګریان ته ګوری
هغه دګل غوندې اسمان ته ګوری

زه د زړګی له غمه ځان شوکوم
دګلی خلق مې ګریوان ته ګوری

هغه مېین هډو مېین مه ګڼه
چې محبت کښې سود وزیان ته ګوری

مدام چې ماته تماشه کښېنې دا
زما په سترګو کښې جوړ ځانته ګوری

ډېرې بونګړې ئې په اورستی کړې
مینه لاهم دچا نقصان ته ګوری

زۀ په يو حال کښې سړے نۀ هېروم
زۀ هغه نۀ يم چې خزان ته ګورى

دپښتونخوا نه به جنت جوړ وى
که اباسينه زما ارمان ته ګورى

چې دمابنام دپاره سوچ وکړم
نو ديو جام دپاره سوچ وکړم

لا فاصلې دمېنځه مۀ وباسه
چې دانجام دپاره سوچ وکړم

دجانان غمه قلارے خو وکړه
چې دخپل قام دپاره سوچ وکړم

اوسو به تیرو کښې خو دنیا طرف ته ګورو
مونږ ه به هرحال کښې دسبا طرف ته ګورو

مرو د خود دارۍ نه نو به عمر کښې سوال نه کړو
مونږ ه په غرور د مسیحا طرف ته ګورو

خپله بدبختي موهمیشه د ځان دښمن کړې
هغه نصیب دار وی چې د چا طرف ته ګورو

مونږ چې مطمئن یو نو ته کله را یا د بږي
ربه ! چې حیران شو نو بیا ستا طرف ته ګورو

خپله پوهه، فکر او شعور مو پکار نه کړه
وازه خـلـه به ناست یو د ملا طرف ته ګورو

مونږه د ازل نه لېونتوب لرو په سر کښې
اوسو بناریو کښې خو صحرا طرف ته ګورو

مونږ د راباسین غونډې په یوه مخه روان یو
وزستو پا تې کېږو که د شا طرف ته ګورو



## تناوونه

دالفت او د غربت غمونو غبرګ
راله وو پستوله ټول وجود ه خورګ
دواړه څکه دیوبل خبرې ناورو
زه د ژوند خبرې کړم اوته د مرګ

***

دَ مجبورو د انتها مقام ته اوُرسيدو
بيا نارهٔ چاوُ دے انتظار ما بنام ته وُرسيدو

زما دَ قتل محرک دچا نهٔ پټ خو نهٔ دے
د قاصد سوَ ے اسويلے الزام ته وُرسيدو

بيا پهٔ جونګړه کښې د وصل بارانونه کوره
لوګے د آه کهٔ مې يو ځلې بام ته وُرسيدو

څومرهٔ نازکې مرحلې وې پهٔ رموز تيرې شوې
پهٔ سترګکو نو کښې الفت مرام ته وُرسيدو

يقين لرم چې ترينه مستې ترانې جوړې کړی
د زړهٔ اواز کهٔ مې پيمځلي قام ته وُرسيدو

ستا د الفت د اداني حاجت يې پاتې نه شو
چې لېونے شو خو بس لاړ د دوام ته ورسېدو

زما د سترې ژوندانه قيصه بس لنډه دا ده
چې يو مارغه ؤ يوه ځړ چې قو دوام ته ورسېدو

دا زهر جنې ورځې شپې به خه اسرې راکوي
ځکه مې ذهن د قسمت انجام ته ورسېدو

دا باسيرې چې چې د ترنم دې کې شوې
چې يې نسيم دا ستا د زلفو لام ته ورسېدو

دګورو ګورو زلفو پرېوریځې غرونه غرونه
سرې شونډې ئې د مخ په سپینه وا وره کښې ګلونه

دوه غټې غټې سترګې په نشو کښې ډوبې ډوبې
دوه نرمې نرمې شونډې ګلابې پکښې رنګونه

اوږه اوږه پاپې ئې مرمرینې خوږه خوږه
اوږې اوږې څنګلې او بوږه بوږه لاسونه

اوږده اوږده بانه تاؤشوې وروځې روڼ تندے ئې
وړه ماشومه پوزه او تنګې تنګې غوږونه

دحُسن په کعبه کښې دا سود په رنګه پروت دے
دښې ونګې د لاندې ئې دخال کرامتونه

څلې د جدایۍ کښې ستا دیاد پرخې ته پروت یم
سحر کښې مې خوږېږي د ضروکو پیوندونه

په لاره د خود سره ابآسینے غونډې روان وی
غولۍ وهي غورځنګ وهي چپې وهي موجونه




تنهۍ تنهۍ به اوېزان وی د ښوانو خُله کښې
زما د شپون نرګی آوازچې کله تا ته رسی
د جېټ په میاشته کښې د هجر دوزې مونږ ونیوې
د دوزه ماتی اننګو ثواب دې چا ته رسی

ستا ښنو رالله زړګے کړو کرښې کرښې
بې وسی رالله تندے کړو کرښې کرښې

چې یې ولیدې زما چاوُدلې شونډې
نو له قصده یې منګے کړو کرښې کرښې

لکه برېښنې چې اسمان سېينه وريځ کښې
که خندا یې اننګے کړو کرښې کرښې

ستا مئين دلوښتوب له حده تېر شو
په نوکونو یې هرځائے کړو کرښې کرښې

دغه فيض د اباسيند د سخاوت دے
په دښتونو یې سېرلے کړو کرښې کرښې

★★★

چې درنه ړوب نهٔ شمه لاس راکړه
ماله دخپل وجـود احساس راکړه
زهٔ د قرضونو جنت نـهٔ غواړمه
کهٔ راکوې نو لاس پـه لاس راکـړه
ماخو دفن شونړو له سرهٔ غوښتي وو
هسې مې نهٔ وي چې وسواس راکړه
خدایه چې زهٔ پکښې حسین ښکارمه
ماله یو زیګ شړل لباس راکړه

زړګے مې نهٔ پرېږدي د ژوند خوندو ته
ټکور دې واخله او الماس راکـړه

## یوشعر

زما قاتـله هم مې سېزې هم مې نهٔ سېزې
هم مې زړګے سېزې او هم راباندې زړهٔ سېزې

ماچې مړ کړې انتقام به لهٔ چا اخلې
اوس هم وژنې کهٔ وایس دې سزا اخلې

لکه شمع دې بلېږمه په زړهٔ کښې
په قلاره! مړې نهٔ کړې چې ساه اخلې

محبت به درته جوړ کړې فسادونه
غزونې به جانانه سبا اخلې

چې بېنا دې کړمه ګل دې راته وښود
دا نظرونې به بېرته لهٔ ما اخلې

بې لهٔ نمره دسیوری مې به څهٔ تېرې وې
تهٔ زما د یلوشو نه رڼا اخلې

په خلوص باندې خرڅېږمه په زړنه
دې د ختو ګټو کور کښې که ما اخلې

که د مینې په ګوهر پسې لټون کړې!
اباسینه ته به ورد انګې که را اخلې

●

## اسره

د امید له خوار وجوده سیوری ګرځي
ارمانونه ځان له څپرګوری ګرځي
بې له عشقه بل څه نه غوارم له خدایه
پتنګان خو د رڼا په لوری ګرځي

طبیعت دې د ماشوم غونډې نازک دے
کهٔ خبرې دې پستې دی زړهٔ دې کلک دے

چې لږ پوخ شي نوهاله به د جرګو شي
تصور دې لا اومه خوله دے هلک دے

پهٔ هرلور باندې ترخې سیلۍ الوزي
چې خپل کور رانه پهٔ خپل کلی کښې ورک دے

اے رقیبه یو مېلمه سپکښې ځائیږي
دیار زړهٔ خوشحال حجره نهٔ ده بېټک دے

د بناست د جائیدادونو ته مېرمن يې
ستا شاعر د زړهٔ دوران کلی ملک دے

اوس د خلقو پېژندلو کښې ستړو ځم
دلته هر سړی وهلے تربوزک دے

د جهان په بدرنګیانو کښې مشته ئم
نو د زړهٔ سره د هر بنګلی درک دے

په شنو بوټو شل کلن بنګلے زلمے دے
د قلم په څانګې ئې لاسو کښې ټوپک دے

سمندره ستا د غېږې په لټون کښې
ابا سیرضه په منړه زغلی ارتاوک دے

ګُل پاشی مې د ارمان په خلی کېږی
ورځ په ورځ دې رخسارونه بنګلی کېږی
اننګی دې بچ ساته زما د ساه نه
دا خو واورې دی ګرمې ته ویلی کېږی

★★★

دغټتو غټتو سترګو د مېر مني څهٔ قصور دے
زړګے مې د رېدی غونډې په بوټي کښې رنګور دے

دسرو په زنځيرونو ئې په زور را اېسار کړے
بونګړو ته راتښتی محبت څومره مجبور دے

ګلچينه ته حق نهٔ لرې د ګل د شوکولو
ورغوټے د ګلشن خو د مالي په وينو سور دے

بلا را باندې ګران دے خو بس دومره درته وايم
چې روح مې پرې ساه اخلی او په سترګو کښې مې نور دے

---

ے دلاس تلے

تراوسه په مزاج د محبت باندې پوځ نهٔ شوم
د نمر غونډې سېزل کړی او د ږوني غونډې کوړ دے

فطرت د باسیزض په برخه کړی غور خُنکونه
چې درومی په مستی نوخلق وائي چې مغرور دے

* * *

شین لوګے موخېژی لهٔ وجوده سره لمبه یُو
تیل دي رانه وېستهٔ د ییتکی غونډې ورانهٔ یُو
واړه رقیبان مې په جدّی او یهٔ سرطان دی
مونږ دې د نظر د ستوا پهٔ خط پرانهٔ یُو

دشت دې کړم دسرو شګو ډېرے دې کړم
اوس خو راوړېږه بارانے دې کـړم

کور نه په صحرا باندې خوشحاله یم
یه دجانان غمه صحرانے دې کړم

تل به دې د ذرهٔ سره بلوڅېږمه
بنه شوه چې دخپل اصل غمے دې کړم

مینې ستا احسان به راند هېر نهٔ شي
ساه دې راکښې پوکړه راژوندے دې کړم

بیا مې دفطرت غېږه کښې پرېږده
تا چې اباسین ضر کړم غرڅنے دې کړم

# راز

ساندې يم نغمه يم اوکهٔ سازيمه
زهٔ د خپل احساس د زړهٔ اواز يمه
هيڅ د ژوند په راز باندې خبر نهٔ شوم
دې باندې خبرشوم چې يوراز يمه

# اور

ژوند مو دلبو پهٔ تارتړلے وى او خاندو
زړهٔ مو د حالاتو نه چاودلے وى او خاندو
موږ ه، درد پرستو پهٔ مخونو باندې مهٔ ځه
اور مو پهٔ سينه پورې نيولے وى او خاندو

# انتشار

ماوې چې زما د ژوند حالات خوارهٔ وارهٔ دى
ستا د مخ رنګونه هم ډېر زيات خوارهٔ وارهٔ دى
کله چې مې ستا خورې ورې زلفې ليدلې
پس لهٔ هغې ورځې مې حالات خوارهٔ وارهٔ دى

○

چې پښتو وي نو غيرت به خامخا وي
چې وږي وي الوت به خامخا وي

کائنات د تضاداتو مجموعه ده
محبت چې وي، نفرت به خامخا وي

بې منته زۀ په عمر شراب نۀ څښم
چې راتلم نو ما وې ست به خامخا وي

د غرور په غونډۍ ناسته لږ رایاد کړه
زمونږ دواړو څۀ نسبت به خامخا وي

چې ترڅو پورې زمونږ اختيار کښې نهٔ وي
په دې خاوره کښې غربت به خاخا وي

د بابا د خولو بوټي پکښې راخور دے
فضاګانو کښې نګهت به خاخا وي

پښتنې پښغلې! ذره ښکته پورته نه کړې
ستا د اوښکو څهٔ قيمت به خاخا وي

د پښتون دخپل وجود نهٔ ګوتې خبرې
کهٔ دا حال وُ ثقالت بهٔ خاخا وي

زما رزق ستا دستونی نه تېرېږي
يقيني ده بغاوت بهٔ خاخا وي

اباسينه! پهٔ فکرونو ېې خروب کړه
په دې خلقو کښې څهٔ پت بهٔ خاخا وي

***

چې د الوت غکر[1] مې سوړ نهٔ شو
د اخوږېدے سـر مې سوړ نهٔ شو

د ذرهٔ د سرکو شېر[2] مې و روړ ېدو
خو د جذبو سنګر مې سوړ نهٔ شو

د پښتونخوا په ګټ ګټ وګرځېدم
څو نه مې تهٔکاوٗ نظر مې سوړ نهٔ شو

خلق ترې ټول پهٔ ښاريو اباد شُو
د کلي شور او شر مې سوړ نهٔ شو

پهٔ هر پړاوٗ کښې مې تهپه پورته کړه
د ليونتوب اثر مې سوړ نهٔ شو

[1] خيال، همت۔ [2] تانکه، جوړه

د داورې کټ مې په زړه وتړلو
نو د احساس تېغ مې سوړ نه شو

په ډېرو لوبو وتندو داورې بدلو
نو د کمال هنر مې سوړ نه شو

زه اباسین به تر ابده روان یم
د زړه چاودون سفر مې سوړ نه شو



***

چرته چې ذکر د سپرلو شوے دے
هلته مې قتل د جذبو شوے دے
زما د مینې قیصه لنډه دا ده
یو تسلسل د حادثو شوے دے

پهٔ رندو سترګو مې ګزران پهٔ يو سمې نهٔ کېږي
بې محبته خو زما نه زندګي نهٔ کېږي

پاخه تېښه واخله د غرونو سره سر ووهه
ديار وصال تش د بروڅ پهٔ سملاستي نهٔ کېږي

زړګے اوړه کړه نو هله به محبت زرغون شي
پهٔ شاړه زمکه باندې مېڅکله تيغی نهٔ کېږي

د کاميابۍ دارومدار وي پهٔ تدبير او محنت
بلا کارونه پهٔ تقدير او پهٔ تندی نهٔ کېږي

زما پهٔ شونډو ترېنه بلوڅې يخې يخې خولې
ستا د داوړينو انګو نه رو يخنی نهٔ کېږي

ا يو خوشبودار وابنهٔ .

هسې هم مرمه خو په شکو شونډو مرګ غوارمه
پښیله راشه په دیدار مې تسلی نه کېږي

زما او یار ترمنځ دنوک اووریه نه ده سیوا دے
رقیبه ستا خو ګنجائش پکښې ېخي نه کېږي





## ړانده

زما په صبرچې کېدې کاڼي دوي نه ليدلي؟
چې د شفق راته وې ستر ګې سرې دوي نه ليدلې؟
زما دکلي ساده خلق ما په څه ګــــــــرموي
د بام دسره هغه سرې لمبې دوې نه ليدلې؟

ربه تا پېژنم که څان پېژنم
سرخه په سترګو دجانان پېژنم

بیابه په خُله نوم دارمان وانخلم
زهٔ مې انجام دخپل ارمان پېژنم

خپل سیوری څکه په کمرو ولم
اوس د نزدې نه هر انسان پېژنم

زما په قبر به رڼا بلوی
یو څو دمینې قدردان پېژنم

ټوک دې زما څخنې پښتنه وکړی
زهٔ د کلونو قاتلان پېژنم

په خُله که هرڅه راته وائي نوڅه

رقیبه! زۀ خو دې ایمان پېژنم

بل یو موسم مې په کور نۀ راځي و مې

په موسمونو کښې خزان پېژنم

د زمکې یو خدائے نعم نۀ منمه

زۀ اباسینۀ خو یو آسمان پېژنم

# تسلّی

چې لۀ سترګو بې حسابه اوښکې توئې شي

نو هله سرے په مینه باندې پوئې شي

د دنیا لۀ وسعتونو مې زړۀ تنګ شي

تا چې ووینم جانانه زړۀ مې لوئې شي

***

د رواج د بندېزونو نه وېرېږم
د دې لوړو لوړو غرونو نه وېرېږم

چې زما او د جانان منځ کښې ولاړ دي
د خپل کور د دېوالونو نه وېرېږم

په جونګړه کښې په خاورو کښې ډاډه یم
څه چل دے د محلونو نه وېرېږم

محرومیانو مې په مخ داغونه پرېښول
اوس د خپلو تصویرونو نه وېرېږم

ستا د شنډې وعدې زړے راله داورې
د قاصد د قسمونو نه وېرېږم

چې اکثر مې د ګناه په لورې بیائي
زۀ د هاغې ثوابونو نه ویرېږم

پښتنې مې د زړګي په تل کښې اوسي
خودن دوړ د جونونه ویرېږم

د دښمن نه مې حرام کۀ سترګه سوزي
زۀ د دوست د فریبونو نه ویرېږم

د حالاتو بې قدرې ئې ناسور نۀ کړي
د احساس د پرهرونو نه ویرېږم

زۀ پخپله ابا سین یمه ملګرو!
زۀ به څۀ د طوفانو نه ویرېږم

☆☆☆

موړ دې د حُسن د رنګونو پهٔ دریاب نهٔ شوم
د اباسین پهٔ غاړه اوسم خو سېراب نهٔ شوم

د ژوند کور ته به دې خامخا در اورسمه
کهٔ د بناګُست پهٔ قیصهٔ کښې دې خراب نهٔ شوم

بې د ژړانه مې بل کار پهٔ ژوند کښې نهٔ دې کړے
شکریه دې چې خپلو اوښکو کښې غرقاب نهٔ شوم

د ښار پهٔ ټولو طبیبانو باندې اوګرځېدم
د محبت پهٔ رنځورانو کښې حساب نهٔ شوم

سترګې مې نهٔ وې غړولې خوب راواغستمه
د زمانې دلاسه پوهٔ پهٔ خپل شباب نهٔ شوم

زهٔ اباسین به تر قیامته پهٔ جهان پاتمه
پهٔ هر خزان کښې لکه ګل خانه خراب نهٔ شوم

# تنده

د ژوند مزې مې ورو ورو رانغښتې کال په کال
خو تنده مې د مينې لا زياتيږي کال په کال

ډېرتږي ارمانونه مې ولاړ د زړه په غاړه
تنکي تنکي لا نور هم راټوکيږي کال په کال

# نوے کال

زموږ خو عمر په يو رنګ تيريږي
خدايه چې نوے کال به څنګ تيريږي

زموږ د دوارو عجيبه مينه ده
وصال تول شپه په جنګ تيريږي

شړشمو درته نوستي ککرۍ خورې ورې
غانټول درته نیولي دي چاچۍ خورې ورې

د تورو تورو سترګو نه دي شپول د بنوتاؤ
په سپینو انګوګښي دي سُرخۍ خورې ورې

سایه چرته ګښي نشته د دیوال د رشمه خنګ
په چم ګښي رنګ ګاني د سپوږمۍ خورې ورې

حالات مي د وجود د هر اندام نه وینه څکي
ژوري مي ټکیا دي په ځوانۍ خورې ورې

چینوته لاري بندي ګودرونه شو ټول شاړ
ټوکیږي تلمښي د خوړ په ژۍ خورې ورې

یو بوټه چي تر سکون ساک ئې وي ۔ په ګودر ګښي ټوکیږي ۔

زړګي مې ستا د شونډو په ټکور باندې راټول
په ژوند مې ستا د زلفو پریوتې خورې ورې

ازل نه اباسینه په دې یوه لاره روان
رادرومي که په دې سیمه سیلۍ خورې ورې



## ائینه

بیا درته احساس د حُسن شوے دے
بیا دې څه بانه راجوړه کړې ده

خدائیګو چې یې لاس د ښکلولو دی
چا چې ائینه راجوړه کړې ده

***

کۀ قسمونه وکړم بیا مې هم توبې ماتېږي
جانان چې وګورې په ما باندې خولې ماتېږي

دومره باریکې شوې چې بوج د حُسن هم نۀ شي وړې
یوځل به خاما د بنګړو نرۍ ملې ماتېږي

اعصاب مې دومره د غمونو تسلسل پاخۀ کړۀ
قسم په خدائے کۀ مې یو غم ته حوصلې ماتېږي

زما د کلې پېغلو کې اومستې مستې جونه
اتڼ او تپـل کوي بنګړې اکثر یه دې ماتېږي

چې د دېرو سیلاب کښې راشي د غمونو کړکې
د اوښکو بند مې تمامې عمر د شپې ماتېږي

ښځه په ژړا ژړا ږي وویل په نیمه لاره کښې
زه نوره نه شم تلے جانانه زما بنیې ماتیږي

زلمو راپاڅئ مغربي جاکړته لارې نیسو
د مشرقي ځوانئ غندل مې ږي نېتهي ماتیږي

د مرګه پس مې چرته بردغرپه څوکه ښخ کړئ
چې زما قبر ته د ښکلیو پیکړې ماتیږي

لوظ رانه ماخله په مکرانه زوره وره اشنا
ما نه خو عمر له په چل چل کښې وعدې ماتیږي

حیران په دې یم چې غورځنګ کښې ږي کیے نه راځي
د اباسین ځپه زړه دننه تیږي شني ماتیږي

★★★

○

د غمونو د ښکر نه مې پنا که
ستا دلاسه زهر هم ښمه خورا که

دامید د شمعې ژوند مې په سلګو دے
د ارمان په منزلونو مې رڼا که

راشه ګله تصویرونه دې راټول کړه
ما خو کړله زمانې ته سینه چاکه

چې زمونږ ژوند به څه رنګې تېرېږي
زهٔ برله دزمانې مخه چالاکه

اے زما د تصوّر د کلی خانه!
زړهٔ او ذهن دې زما نه کړه بې واکه

عاشقی که زهٔ د باد د بهنې سپک کړم
خو پهٔ منډه رسېدے شم تر افلاکه

ستا لټون کښې چې د ځانه خبر نهٔ دے
ابا سیرط تهٔ خلهٔ وا ئې چې کاواکه

---

زما تار تار ملن ریبنې ریبنې ځوانی څهٔ کوی
هغه ګلان شوکوی زهٔ د غنو لړُو کومه

فرهاد خو نهٔ یم خو فرهاده ستا نه کم نهٔ یمه
د فولادی زړګی نه خپل زړګی ته رَوُ کومه

وحشت به خامخا کوی اوس کور په کړبوانه کښي
ستا سرو سترګو دا اونوستلو اور په کړبوانه کښي

په شونډو د جانان که دا ژوره خاموشي وی
زیاتیږی به ګهړی په ګهړی شور په کړبوانه کښي

ته زلفي کړه راټولي یو ګلاب دوه پکښي کیږده
زه هم به دمه ازغی یو دوه ځلور په کړبوانه کښي

جانان یو ځلي تلے په دي لار خو په تعظیم کښي
ځیګر بي په سجده زړه بي نسکور په کړبوانه کښي

دا ئن چي آئیني ته په ژور نظــــر کتل کیږي
کړي د میڼو تخم د مینګور په کړبوانه کښي

نو ټوله پارسائي بي ابا سیرضربانه بي لاهو شوه
ترڅو پوري چي وینم ستا انځور په کړبوانه کښي

***

اوس د بآگرام هره کوځه کښې خاموشي وړلي ده
په سندر بوله بنارـيــه کښې خاموشي وړلي ده

بلا خوب ژبې بـلـبـلان به چغـېـدل دلـتـه کـښې
په ملاکنډ او تاتره کښې خاموشي وړلي ده

دغرۀ لمنې نه اواز دشپېلۍ نه راخېژ ی
زمونږ د کلی په حجره کښې خاموشي وړلي ده

دوې خوبه ماله دخبرې وارهم نهٔ راکوو
ن دې دشونډو په نغمه کښې خاموشي وړلي ده

دبڼ د ډاگې نه اواز قــــدر له نهٔ راوځي
اوس په اختر او ادینه کښې خاموشي وړلي ده

دپېغلو شور او دجیشو کړنګارې نهٔ :ºرمه
دهر یو کلی په چینه کښې خاموشي وړلي ده

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com

رسوائي که ملامته که پېغور دے
ستا بنائسټ راله دا بنګلے په ژوند لور دے

ستا د زنې خال او زلفو جادو کړے
د باګرام د رنګ وبوټه ئي زړه تور دے

محتسبه زه دې ولې ګنهګار کړم
په دې ښار کښې هر دويم سړے پېغور دے

محبّت د کائنات د وجـود ساه ده
محبّت نو د فطرت د زړه ټکور دے

د لفظونو د حرمت دعويدار څوک دی
د غزل سېرلے په چا باندې سمسور دے

د قلم سر مې د شرم نه راټيټ شي
د ناخاپه حادثه د وخت پېغور دے

ته د حُسن د موسم نه خبر نۀ يې
ستا جايداد دے خو زمونږ پکښې کور دے

زۀ د وخت د سېلابونو لامبوزن يم
ما زغملے د طوفان د څپو زور دے

اوس مې هم پۀ زړۀ کښې ته يې، ته يې، ته يې
اوس مې هم پۀ زړۀ کښې ستا د سترګو کور دے

چې نن بيا د اباسير ضريۀ زړۀ کښې څۀ دي
پۀ وطن کښې لر او بر د مرګي شور دے

۵ ستمبر ۱۹۹۲ء

* * *

نۀ څۀ دود وے نۀ دستور وے نۀ رواج وے
ستا دحُسن پۀ وطن کښې زما راج وے

ددنیا دهرې چارې بې زړۀ مور وے
نو ستا غټو غټو سترګو ته محتاج وے

بتول ژوندون بې ستا دسر نه صدقه کړے
کۀ بې خپل ګزران پۀ قرض وے په بیاج وے

محبت کۀ بې زړګے پوست کړے نۀ وے
خدائے خبر چې زۀ بۀ څومره بد مزاج وے

مابۀ خپل ګریوان پخوا وو راټول کړے
کۀ تنهې بې وے پۀ غاړه کښې یا کاج وے

د پرېښوابه د زړګي له غمه خلاص وم
که زما سره دځپل ناسور علاج وے

خاکساري به مې بیا هم پرېښو دې نه وه
که لباس مې سلطاني په سر مې تاج وے

دا وطن به تول د سوات غونډې ګلزار وُو
اباسین که پوئ د قام په احتیاج وے

## نه اورم

ستا دا مرې سترګي هر چا ته ژوند بخښي
یا دې لب د مسیحا خوبي لري
درنه نا ورمه اشنا نا ورمه نا ورم
که دنیا په بله داوري دادي وړي

ما کړه بلا ورته کول د غرڅنو خویونه
د اښکلي پېغلې د خېلو لېونو خویونه

د چا وېلي چې خوې نه خوزي او غرونه خوزي
ستا محبت راله بدل کړه د سودو خویونه

مینه خو پرېږده بېت دي هم راسره ونه پالو
د اسې خونه وی ښېښې د ښتنو خویونه

ته به هغه یې خوږه هغه هم اوس نه یم پاتې
څېل لېونتوب راسره وکړل د پردو خویونه

د حُسن زور ویکښې دوې هم وو په سرختلی
ګودر چې لاړو نو سارۀ شو د منګو خویونه

یو ابآسین صرف دے چې همېش له په غورځنګ وی ګنی
د شاعرانو وی اکثر د لېونو خویونه

* * *

دبنګړو په شور کښې ساندې زما ناورې
په سنګو پورې بې خاندې زما ناورې

زړه دزړه په غوبڼو ستا خبرې اورم
دخپل نوم نه دې په وړاندې زما ناورې

په تازه تازه ګونګو باندې پښې ږدې
هر ځائې خپله خوښه کاندې زما ناورې

ستا نرۍ نرۍ، پیتې، ګلابي شونډې
شوې زما په وینو تاندې زما ناورې

په ګودر کښې درته مرشومه دتنده
ته چینې ته ګورې لاندې زما ناورې

خپل وطن دې ترے پرېښود ابا سینه!
پر ته ځې په شاړو باندې زما ناورې

# تنده

(۱)

د پشکال سره غرمه
دغولو شړق وُ پـه مـا
غارمهٔ تک سرهٔ وو دومره
چې سترګو کار نهٔ کوو
ما چار چاپېره کتل
او وار خطا غوندې وُم
تندې اغستے وُمه
زړګې مې وار نهٔ کوو
حَلق مې ازغي ازغي وُ
تن مې مېږي مېږي وُ
ما د اوبو پهٔ لټون
سترګې راپورته کړلې
لا مې اوبه کتلې
دشګو باد راغے
پهٔ تېو روند ئې کړمه
سترګې مې ومښلې

په خړو خړو سترګو
مې پاس اسمان ته کتل
څهٔ په نظر نهٔ راتلهٔ
توره تیارهٔ غونډې وه
لاندې مې بښیو کښې زمکه
د تنارهٔ غونډې وه
چې لږ په خوړ شومه زهٔ
نظر مې وګرځوو
لږې ډېر لرې راته
د ګورو د نو شاته
یو غټ تالاب ښکاره شو
سترګې مې یخې شولې
ددې سرور په طمع
وې مې چې اوس ورځمه
ما چې قدم پورته کړو
لاندې را اوخوښېدمه

(۲)

په غورځېدو پاڅېدو
په رغړېدو رغړېدو
د خپل منزل په لوری

په خړو خړو سترګو
مې پاس اسمان ته کتل
څهٔ په نظر نهٔ راتلهٔ
توره تیارهٔ غوندې وه
لاندې مې بنېو کښې زمکه
د تنارهٔ غوندې وه
چې لړ په نور شومه زهٔ
نظر مې وګرځوو
لرې د ېر لرې راته
د ګورو دنو شاته
یو غټ تالاب بکاره شو
سترګې مې یخې شولې
د دې سرور په طمع
وې بې چې اوس ورځمه
ما چې قدم پورته کړو
لاندې را اوخوځېدمه

(۲)

په غور ځېدو پا څېدو
په رغړېدو رغړېدو
دخپل منزل په لورې

په مزلونو سر شوم
لا د بره لار پرته وه
چې مې پښې ستړې شوې
زۀ به نزدې ورتلمه
نرې وتې به اوبۀ
ما کورو اُونو پله
ځان په څۀ چل اورسوُ
لا نښې کښېناستمه
غلے په ښت د دمې
تندې مې حلق سېزوُ
ژبه مې اوچ لرگے وه
اوبو ته لار پرته وه
سره تاوُ راتاوُ لاره
تکه ښامار پرته وه
ما د ښامار په ځُلۀ کښې
ځان ورکوُ خو تلمه
ما دغه لار ونیوه
نښغ داوبو په لوری
که رابلکو دمه شاته
دگورو ونو سیوری
زۀ چې به ځغلېښې تلمه

لرې وتې به اوبهٔ

ما همت ګوان لرلو

بشپو کښې مې توان لرلو

په خنډو خار ختمه

او که پهٔ دار ختمه

تندې اغستے ومه

په هر نا تار ختمه

زه د فطرت نه مجبور

په هر ډګر ختمه

د ذورور غوایهٔ ومه

په هر ښخته ختمه

ما به قدم په قدم

همت له ډاډ ورکوو

تندې بې کوره کړمه

مینې شمکوره کړمه

ما هرې خواته کتل

کله مې ځمکښې کتل

کله مې شاته کتل

دنیا سراب وه

د تندې مړشومه زهٔ

قسمت ته پړشومه زهٔ

لاځنګدن دے زما

ماله یو ښاڅکے اوبهٔ

زما دقتل به ضروریه تا الزام راځي
ماله افسوس دڅلې مینې په انجام راځي

زۀ محبت د هرانسان دزړۀ دارُوګڼمه
ګڼي رقیبه ماله چل د انتقام راځي

زما دخټوګیتو کلے دومره سپک مۀ ګڼه
دلته چې بنګلی هم راځي په احترام راځي

چرته چې هم دځوانمردی او داخلاص ذکروی
دېټولوځکنې به نامه زما دقام راځي

قاتله اوس به دمقتل نه شوکیدل ګرانه ده
دلته دزلفوخوشبویاني دګل فام راځي

زړهٔ مې د هجر د تېرو نه داسې تېښته کوي
لکه ماشوم په منډه کورته د ماښام راځي

د ښونې باداې زنه مې پرې څهٔ ښکل کړې
لا مې د شونډو نه خوندونه د بادام راځي

زما د ښکلي وطن ښکلو زړونه تینګ ونیسئ
چې اباسین کله په لوري د باګرام راځي

●

زهٔ د جانان د رڼو سترګو سحر هم اخلمه
خو د غلیم د کږو سترګو نظر هم اخلمه
زما هنر تش د سندرو غېږ کښې نهٔ لوبېږي
زهٔ د اولس د تېرو کړیکو اثر هم اخلمه

د زړه سنګین محل په یوه وړه ادا ورانوي
د پلوشو لاندې غوټکۍ سترګې د نیا ورانوي

د غنچې ول ته په چمن کښې ښکلې ګل لیتوي
نادان عاشق دے د بلبلو شغولا ورانوي

چې توبه ګرځومه نو هغه بیا په قلارنه پرېږدي
واعظه ستا نصیحتونه به بې بیا ورانوي

د قبلې تیز لوری ستا د فرښتو را د روي
زما د کلی بنا پېرې به خانګا ورانوي

لا خو زلمے یم ابا سیرِ ښمه غوره کنګ وګمه
د حادثاتو تسلسل د مخ ښکلا ورانوي

خلقو غږې ماتې کړې غوټو له بناریه کښې
راشه چې ګل وکړو په ټوله بناریه کښې

سترګې دې خاموشه دي خبران یې مه خبران
راج د خاموشۍ په سنډ بوله بناریه کښې

اے د صحرا ګانو غزالې ستا په لټون کښې
ستا لیونی سر شو سر په ټوله بناریه کښې

ورځ په ورځ یې نرخ نور ارزانیږي نه پوهیږم
خلق دي خرڅیږي بنده بے توله بناریه کښې

خکه ابا سیرضے په شاړو غرونو باندې سر دے
ځائے د سکون نشته بونو له بناریه کښې

بغیر لهٔ تا مې پهٔ جهان کښې بل څوک نور نشته
کهٔ مینه نهٔ کوې لالیه پهٔ تا زور نشته

دغرهٔ لمن کښې پهٔ کاږ زنه لار دخوړ پهٔ غاړه
چې زما زړهٔ پرې اوبهٔ ښلي هغه کور نشته

د بڼ رنګونه مادیت پهٔ بې درد ي وترووړل
هغه مېلې چرته کښې لاړې هغه شور نشته

ستا د تېرهٔ تېرهٔ بڼو پهٔ ارمان ونهٔ دېڅی
د مینې فصل مې پوخ شوے دے خو لور نشته

لړ د جانان د رنګو ګلونه هم مړاوی کړه
غمه یوازې دې پهٔ ما باندې څهٔ پور نشته

د خپل لمبې لمبې زړګی داغرغندې وژنمه
په ساقي جانانه پیمانې یو دوه څلور نشته؟

دا د وطن بنګلي يې خدائے خبر په څه ګرموی
د باآسیرض په سپینه سپینه لمن تور نشته



## مجبوری

زلفې ، شونډې، اننګی، کۀ رنګ دې هېرکړم
کۀ د تورو غټو سترګو جنګ دې هېر کړم
ستا تصویر بۀ هم د زړۀ څخنې راپرې کړم
اے زما په هېرېدو دۀ، څنګ دې هېر کړم

کۀ څوک زرځله داواړي چې قاتل دے
منکرېږي به والله کۀ پرې قائل دے

تۀ کۀ فخر پۀ ستم کړې نو کوے شې!
د زغملو ئې کمال ما تۀ حاصل دے

لېونتوب راسره داسې چارې وکړې
ځنت ئې زړۀ پورې نیولے خیل قاتل دے

د چپو څپېړو سم پۀ تېو ړوند کرم
پۀ موجونو لاس وهمه چې ساحل دے

پۀ ما تولې لوبې ستا دبې رخئ دی
ستا سکون کښې خو زما سکون شامل دے

هغه ډکې د فریب چلبازې سترګې
او زما ساده زړګے غریب جاهل دے

چې بې ستانه د بل چا په لورې نۀ ځي
اباسین ته خو دا یو فخر حاصل دے

# درې شعرونه

د وخت ګردش هاغو کوشوکښې لوغړولے یمه
مدام چې هسکه غاړه چرته ګرځېدلے یمه

کله چې مانه بې پښتو بې ته کارشوے دے
دې خپل پښتون زړګي په هر قدم رټلے یمه

مانه خپل ځان په ائينه کښې ډېر بد رنګ ښکارېږي
نو ته چې وائې په رښتيا سره به ښکلے یمه

رنګونه راوړي‌ې چم په چم د پسرلي
په کال کښې خو موسم دے یو موسم د پسرلي

ګلونه مې شو داسې په احساس خوارهٔ وازګه
خزان کښې هم زما سره وی غـــم د پسرلي

خوږونه، وني، بوټي دِ نخښې ځـلو زيلي
په هرځهٔ کښې ساه راشي په يو دم د پسرلي

په لاره کښې منګي په سرغانټول راشوکوي
خوارهٔ ئې وي په مخ رنګونه سم د پسرلي

زما دګلي جونه ځي، په سبل د ورشوګانـــو
په دشتو کښې ګل شوي دي شړشم د پسرلي

جانان له به غنچيک د سروګلو نو ورلـــېږم
خبر به اباسينه! زهٔ راوړم د پسـرلي

ګل کرم ازغي کېږي حېران يمه حېران
هر څهٔ پهٔ تندي کېږي حېران يمه حېران

دا د حُسن نمر چي درنه پوري غاړه پرېوځي
څنګ به دي خالي کېږي حېران يمه حېران

سوزمه هر څوک هٔ دلمبو پهٔ مينځ کښي پروت يم
بيا مي هم يخني کېږي حېران يمه حېران

دغه د وطن حسن شناس دي چي ئې ويني
ابوي پهٔ سيرلي کېږي حېران يمه حېران

تهٔ دا باسيرغر په غاړه وچي شوندئي ناست ئې
ستا هم زندګي کېږي حېران يمه حېران

★★★

کله داسې پړاوُ راشي چې حيران شم
نهٔ پوهېږم چې پهٔ کومه لار روان شم

د ضمير بيعه چې چا هم پوره نهٔ کړه
نو دسر بيعه چې راشي نو ارزان شم

زهٔ چې کله ستا د کور مخې له راشم
نو پخپله ساده‌کۍ باندې پښېمان شم

چې پهٔ مړ زړهٔ کښې مې مينه راژوندۍ کړې
ستا د مړاوُ مړاوُ سترګو نه قربان شم

دلبانو په سکروټو دې ستې کړم
خدائے دې اوکړي چې پهٔ تا باندې تاوان شم

خامخا به میخانې طرف ته ځمه
کله کله مې زړه ډوب شي سرګردان شم

نزدیکت دا باندې هسې اورو سکور شي
د ګناه ثواب په مینځ کښې اوېزان شم

زه نو ورځ په ورځ په مزکه ننوځم
څه خبر به په رازونو د آسمان شم

اباسین شومه نو بیا نو دهر چا یم
داسې نه ده چې یوازې د خپل ځان شم

* * *

بې لتا مې ژوند دے ناقـلاره خو
نور به درته څهٔ وایم دلداره خو

اور دې پهٔ ژوندون رالګولے دے
په زما ساده زړګی بیماره خو

مخ مې د کالهٔ پهٔ لوری نهٔ کوې
څې راځې جانانه پهٔ دې لاره خو

چاڅپا ته بهٔ ستا دیاره وژاړو
یه د پښور لوټ شوی ښاره خو

رامې بشکه اخرماته بېرې د ژوند
ساه مې پکښې هم شوله بې واره خو

یه په درد شریکه چرته لاړلې
کاني مې داټول کړه لۀ مزاره خو

تۀ چرته کښې بند خو ورته واچوه
بیا د اباسینه موجونه شماره خو

سنه ۱۹۸۸ء

کۀ مې زړۀ دے کۀ ضمیر دے کۀ احساس دے
بې چینې دې پرهرونه دې وسواس دے
په ژوندون کښې زما زړۀ دوخت لۀ جوره
پوڼې پوڼې پرهرونه انناس دے

* * *

خامخا به خپلو سترګو ته دُعا کړم
ستا بنائست د زمانې سره اشنا کړم

په تاثیر د محبت به ته ګونګی شې
چې تصویر دې خپلو سترګو ته ګویا کړم

اوس مې غږ د خلقو زړونو ته رسیږي
هسې نه چې تا د ځان سره رسوا کړم

ما ته خپله لاره نۀ ښکاري تیاره ده
تا خو نۀ د رهبرانو رهنما کړم

چې تصویر ته دې په غېږ غېږ ټاړم
لیونتوب مې ستا د سترګو د خندا کړم

د خپل تن د زنیدلي روح په لمسه
محبت کښې هم د خپل ضمیر نه غلا کړم

خپله وینه به په فن کښې رانچوړ کړم
په غزل کښې به رنګونه راپیدا کړم

نور زما لکه د غرونو حوصلې دي
ستا دې مراد مراد سترګو وارخطا کړم

اے د ښکلو ډوبونکي اباسینه
زه به شکله بې ښې دعوه په تا کړم

## تش لاسونه

اکثرې سوزې د خپل نوس په اتش لاسونه
پولي پولي وي همیشه د محنت کش لاسونه
د هر ارمان کلکې ملګرې زما دې سترګې
زما د عمر دشمنان دي زما تش لاسونه

★

تاکو ہی کوی خوشحالی زمانہ ګېرې نهٔ کړې
ما پهٔ تیرو کښې د رڼا سندرې هېرې نهٔ کړې

کهٔ د رڼا سور د لاسه مرمه هیڅ پروا نهٔ لرم
د خوب احساس پولی می هیڅ ته برخېرې نهٔ کړې

ستا د خورو زلفو یاد وسره راشی وی تخنوی
خانه برباد زړهٔ د غمو خبرې چېرې نهٔ کړې

د ازادی د لار زلمیو د زندان ورونه مات کړهٔ
چې ماه جبینو ترینه ځنګ غبرې چاپېرې نهٔ کړې؟

بخیله مړ شومه لهٔ تندې خویهٔ دې خوشحال یم
چې رقیبانو رانه هم څهٔ لارې تېرې نهٔ کړې

کهٔ تر قیامته محبت کوې تیار یم درته
خیل ابا سیّن ته به د مرګ خبرې ډېرې نهٔ کړې

***

نهٔ تینګېږم پهٔ کالهٔ کښې زړهٔ مې جوش کړي
ستا د غم به مې يو ځل خانه بدوش کړي

اشکې دې څرګند هسې پهٔ خندا شي
لکه ګُل زما د اوښکو پيالې نوش کړي

ميخانه کې پهٔ کاوونو کښې د هٔ خونهٔ ځم
زهٔ مدهوش يم شرابونه مې پهٔ هوش کړي

يو ستم چې پرهرونه پهٔ خندا کړي
يو هٔ پېرزو چې رقيبان را له خاموش کړي

ستا د سپين تندي دوروځو محرابونه
ما د مينې د مذهب حلقه بګوش کړي

ستا د حُسن پهٔ پردو کښې نهٔ پټېږي
اباسينه به سرې څڼګې د وپوش کړي

# دولت لوئې شے دے ؟؟؟

زۀ خو دولت د نفرتونو سرچينه ګڼمه
ستا پۀ نظر کښې دولت ولې دومره لوئې شے دے؟

دولت خو زهر دی ضمير وژنی احساس وژنی
د انسانی وجود نه مينه او اخلاص وژنی
يو داسې نشه چې انسانی وجود کښې کور کوی
يو جراثيم چې انسانی خويونه خاص وژنی

زۀ خو دولت د انسانی مينې قاتل ګڼمه
ستا پۀ نظر کښې دولت ولې دومره لوئې شے دے

دولت حمزه[1] ته د پېرې سيره ښې نمکه بنکاری
او غنی خان[2] خو ئې بهرته پۀ ډېران غورځوی
عبدالرحمان[3] انسانيت او دولت بېل بېل ګڼی
خوشحال خټک[4] وائی دولت د سرې زړۀ توروی

---

[1] امارت زانله بنکاره شو ښې نمکه - چې نعمت د مسکينئ مې د خُلې خوند شو

[2] خدايه ماله کۀ دې راکړه بادشاهی د ټول جهان
زۀ به ئې وغورځوم بهرته چرته لرې پۀ ډېران

[3] ادميت څۀ پۀ دولت نۀ دے رحمانه - بُت کۀ جوړ شی د سرو زرو انسان نۀ شو

[4] پۀ تاريخ مرصع کښې درج يوې واقعې ته اشاره ده

زۀ هم دولت د زمانې يوستر فساد ګڼمه
ستا پۀ نظر کښې دولت ولې دومره لوئے شے دے

دولت چې کله د بُنياد د ضرورت نه زيات شي
لکه د اور غوندې سرې نه سرېتوب سېزي
نشه چې کله د مستۍ لۀ حدۀ هور تـه وُځي
لکه د ګل غوندې سمسورۀ ځلميتوب سېزي

زۀ خو دولت د اخلاقي وجود وبا ګڼمه
ستا پۀ نظر کښې دولت ولې دومره لوئے شے دے

سترګې رڼا کړه پۀ تاريخ باندې نظر واچوه
چې محمدؐ د خټۀ پۀ زور پۀ جهانونو خور دے
هغه نه خان وُ، نه نواب وُ، نه بادشاه د وطن
خو لا تر اوسه د پردو خپلو پۀ زړونو سور دے

پېسه انسان لکه قارون د زمانې ذليل کړي
ستا پۀ نظر کښې دولت ولې دومره لوئے شے دے

زما پۀ خیال کښې کۀ دولت دے خود علم دولت
هغه سرے عظیم کڼم چې ئې کردار عظیم وی
ښکلی اخلاق راته عظیمه سرمایه ښکاریږی
هغه زما د سوچ محور چې ئې افکار عظیم وی

ساده سړیه پۀ جهان کښې دا خیزونه لوی دی
ستا پۀ نظر کښې دولت ولې دومره لوئے شے دے

## اُغ[1]

دحُسن کرشمې ئې دی بلا نورې بلا
اُغ کړے یُم دښنې وښکلی دخال تورې بلا
زغمَلے پهٔ زړهٔ نهٔ شمه نورستا دنظرغشی
پهٔ مخه مخه خلهٔ تهٔ پهٔ شا ګورې بلا

## کتاب

نفرت پيکلے کېږی د ذهنونو پهٔ کتاب کښې
بې مینې بل څهٔ نشته دے، دزړونو پهٔ کتاب کښې
لهٔ شرمه شوه رابټوله، دبوسې ې ورته دوې
دمخ زرې ې پټ کړل دلاسونو پهٔ کتاب کښې

## یاد

د پسرلی باران چې کله پهٔ ترتر ورېږی
ستا غټې سترګې مې رسا د زړهٔ پهٔ سر ورېږی
داسې ورېږی مې پهٔ زړهٔ ستا دیادونو پوښتّې
لکه چې واوره پهٔ سینه دسمند ورېږی

---

[1] دبنامارخوږل [2] دواورې مانوچ

زلفې چې راټولې نهٔ کړې زړهٔ به رانه خورشی
لاس راکه چې ښکل يې کړم کهٔ لبِ غونډې ټکوړ شی

کله چې دشپې ننيارهٔ کوهی ته ورارتا وَ شم
ستا د تورو سترګو تصوّر رابانې سور شی

هغه وخت دحُسن پهٔ حالاتو ژړا راشی
ګل چې کله مړاوَے شی اوندوړند شی نسکور شی

راشه چې پهٔ تودو تورو زلفو کښې دې پټ کړم
پرېږده لمبونيه چې دا زړهٔ دې رانه تور شی

داد تقدير وېش دے دانسان له وسه نهٔ دهٔ
کله محبت او شاعــــرى کله پهٔ زور شی

داد محبت تږى لمبهٔ به دې ماړهٔ شی
کله چې هم ستا دا باسيخ پهٔ غاړه کوړ شی

اور د اننګو نه په ګروان راپسې شوے دے
وژنی می ملګرو یو ارمان راپسې شوے دے

مانه د ژوندون هر یو ملګری خنبره وکړله
خدائے زده چې داسې ورځې په کوم شان راپسې شوے دے

یره دښکلا دې بې نیازی ته فکر وړے یم
ګل ته په پته نشته چې خزان راپسې شوے دے

زړه ذهن بې دواړه په سور اور ورپسې شوی دی
ولې چې ستا د زلفو پریشان راپسې شوے دے

هغه غانتول ستر ګې لیونۍ چې وچې وینم
اوس شومه خبر چې لوئې تاوان راپسې شوے دے

خکه بې زما په سنګین زړه کښې لاره وکړله
دا د اباسین غونډې جانان راپسې شوے دے

بې لتا نه خو جهان خالي دے
ژوند مې څۀ دے خو يو خوب د ليونې دے

دا دې نم د تورو سترګو نه راڅڅي
کۀ غزال د اوبو غاړې ته بندي دے

ستا د شونډو د خوږ والي اثر نۀ ځي
لا تر اوسه مې وجود ميږي ميږي دے

نور همه غمونه دي مې د مټ لاندې
يو ستا غم دے چې په ما باندې حاوي دے

په چينه کښې کړنګې کړنګې اوربلينږي
کۀ د نمر د سيرې برق په ګنګي دے

زۀ چې کله هم د تلو خبره وکړم
پۀ مکېز وائي چې کښېنه لا وختي دے

پۀ منه کښې د بلبل د شونډو خاپ دے
کۀ سور داغ د لیونۍ پۀ اننګی دے

دا زړګے مې جوړ پۀ دوارو سترګو ړوند دے
چې ملبې وي چرته ماړې ورولی" دے"

ابا سین پۀ وړاندې ځي پۀ دوستونۀ ځي
دا صفت د دۀ پۀ برخه ازلی دے

***

څۀ د زړۀ پۀ سر مې درته وخاندل
ډېره موده پس مې چرته وخاندل

ستا د تغافُل غرور مې مات کړلو
ما د زړۀ پوهر پوهر ته وخاندل

بیا د بېغلتوب ورځې وریاد شوې
ن چې یَ پۀ شاګو درته وخاندل

داغ چې دې د ورو ځو پۀ بوند کښې دے
ګوره نظر ماتې ورته وخاندل

ستا د بېغلتوب پۀ اور کښې سوزمه
ما دې هر قاتل نظر ته وخاندل

شپې ته مې د زړۀ پۀ سترګو وژړل
اوښکو مې سبا سحر ته وخاندل

لا د اباسین چپې سرې نۀ دي
سم لکه فرهاد مې غر ته وخاندل

ژوندون څهٔ دے پهٔ مثال لکه حباب دے
هرې سرپکې ته ئې کله آب وتاب دے

حادثات او واقعات د ژوند خاصه ده
سکون بې له اضطرابه لوئ عذاب دے

لازمي به د جهان دستر ګو تور وي
چې زمونږ د ملنګانو انتخاب دے

هسې نه چرته دتندې نه هلاک شم
ټول وطن راته سراب سراب ذے

اباسین ضیغمي غور ځنګ وهي ژوندے دے
که زما وطن په مړو باندې حساب دے

***

هره هڅه دارمان شوه راته شنډه
اوس مې خپل زړګے کوي ژمانه ځنډه

چې د روح پورې مې سرپکې دپرهرځي
ستا دچاودو شونډو خاپې مې دے په ټنډه

بيا دې هم زما په زړه کښې لوئ مقام دے
اے زما او دجانان د لارې ځنډه

ستا د زلفو او قامت غرونه مې سرکړل
ساه مې څکه داسې کښې لنډه لنډه

مرګے څه دے د سکوت د جمود غېږه
ژوندون څه دے هله هله منډه منډه

لوېتــه دې پـهٔ مخ داسې راخوره کـړه
چې توبـه دې پرې زما کـړله بربنـډه

زهٔ د هغـول کلي نه هسې ګیـله من یُم
پهٔ ما کانې راورېږي لهٔ کاونـــډه

دژوند ون سره اخته مشت وګرېوان یم
لکه بېغله پېغله ناوې چې شي کونډه

دباګرام پهٔ خړو خاورو کښې ئُ نولي
اباسینه مینه راوړي لهٔ ملاکنډه

* * *

اور دے سورانګار دے په لمبو کښې زندګی ده
او سو لله خال په اننګو کښې زندګی ده

زۀ به یې وصال ته او ته جنت ته ورځي شماره
ماله په اېل تاله تسبو کښې زندګی ده

نصیب نه کیله من او په ژوندون پاندې ستومانه
داغۀ په نقابونو او پردو کښې زندګی ده

سرے په کښې د ذات دداړي نه وتے نۀ شي
دګل شاني پابنده په ګملو کښې زندګی ده

هیڅ غرب کولے نۀ شو په ګویا ژبو قدعن دے
غمازه ستا دلاسه په غمزو کښې زندګی ده

داځکه دهوسې غونډې تول عمروار خطا يُـم
زما پهٔ غمو سترګو ازمـرو کښې زندګي ده

خوندونه تول پيکه شو خمارونو ګـډې وکړې
ماحول مو اديره شوله پهٔ مړو کښې زندګي ده

ممکن دی ابآسينه چې دې عقل پکښې ډوب شي
د وخت په بې منطقه فلسفو کښې زندګي ده

ځنګ د اوښيو کښې مې ښکلې سترګې ورشي
په ګوټونو پسې ړوند شمه سحر شي

په خفګان کښې ئې لا حُسن يو په دوه شي
څومره ګوند کوي چې ښکلے مرور شي

محبت وي د کم ظرفو خلقو داسې
لکه ګُل چې د ماشوم په لاس کښې ورشي

سترې سترې دې د زلفو په ارمان يُم
په غرۀ پرېوزي ماښام چې سترې نمر شي

يوه مينه زۀ بې توله ور کوُمه
نور حساب ساتم جانانه زۀ د هر شي

ستا دیا دو دیوالونه رادوړیږی
دزړه کور به ړي په تا پسې کنډرشي

په ما داسې کیفیت شي چې ته راشې
دشکي روڼړي په ورځې چې اخترشي

هغه ځائے هغه منظر به د کتو وي
اباسین چې ورداخل په سمندرشي

○

لویه خدایه دا زړګي مې دومره ډېر شوے
چې د هر انسان د درد نه راچاپېر شوے

د نفرت تخم متروک شوے په دُنیاکښې
مُحبت د هر زړګي نه رابرسېر شوے

د زړګو پټکوړول مې وظیفه شوے
پرواه نشته دے کهٔ ځان هم رانه هېر شوے

مُحبت مې هر مسام خوله کړې
پهٔ رګ رګ کښې مې د وینو غوندې تېر شوے

پهٔ هر دهن کښې د امن زرغونه شوے
نسا دونه د نړۍ لهٔ مخه زهر شوے

د زپلو انسانانو وچې شونډې
د خلوص د اباسین پهٔ اوبو سېر شوے

# دُعا

په سینه کښې مې د علم بنار آباد کړې
یا د شپو ورځو له قېده مې آزاد کړې

په تیارو کښې مې د نُور یو مناره کړې
په چمن کښې مې په مثل د شمشاد کړې

بچ مې وساتې د مرې بربادۍ نه
د پښتو په نېکنامۍ کښې مې برباد کړې

د انسان مینه مې زړه نه ورکه مه کړې
ذُوالجلاله چې پکار مې د هېواد کړې

چې څوک ترې په وطن کښې پاتې نه شي
زما خدایه اباسین ورته وریاد کړې

# کتلی ایوارډونه

۱- وړومبے انعام

رحمان بابا ادبی ایوارډ

اباسین ارټس کونسل

پېښور

۲- دویم انعام

چاچا کریم بخش ایوارډ سوات

که زما شخصیت حدونه کوري
زما فن زما د فکر ترجمان دے

اباسین یوسفزے